وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا

# تحفة الإحسان

# تجوید القرآن

(کامل، آسان او مختصر)

مؤلف: حمدالله «شاکری»

وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلاً

# تحفة الاحسان

# تجوید القرآن


مؤلف: حمدالله "شاکري"

نظر ثاني: حکمت الله "نیکمل"

# سریزه

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمـدلله و الصـلاة و السـلام علي سـید المرسَـلین و علی آلـه و صحبه اجمعین،الحمدُ لله ، الـذي أنـزل القـرآن علی خـاتم الأنبیـاء ، لیکون رحمـةً لِلعالمین .

امابعد: څوک دې دا فکر نه کوي چې د تجوید علم به یواځې د حافظ او قاري زده وي بلکی د تجوید علم د ضرورت په اندازه په هر مسلمان نر او ښځه فرض دی په هره ورځ کې پنځه لمونځونه او په هر لمانځه کې قرآئت ویل فرض دي .

د قرآنکریم تجوید ډیر مهم دی، د ابن مسعود رضی الله نه روایت دی چې هغه ویلي: «جودوا القرآن » ( لولئ په ښه شان قرآن )، او هغه دا چې د هر حرف حق ادا شي او حرف د خپل مخرج څخه ادا شي، او په غوره شان تلفظ شي داسې چې په هغه کې اسراف، ظلم او افراط نه وي.

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم دي مطلب ته داسې اشاره کوي: « من أحب أن یقرأ القرآن غضاً کما أنزل فلیقرأه علی قراءة ابن أم عبد » یعنې ابن مسعود.

ژباړه: څوک چې دا خوښوي چې قرآن داسې ولولي لکه څنګه چې نازل شوی دی پس هغه یې دې د ابن معسود رضی الله عنه په شان لولي .

الله تعالی ابن مسعود رضی الله عنه ته په تجوید کې اوچت مهارت ورکړی وو.

د قرآنکریم داسې ویل جایز نه دي چې چېرې مد نه وي هلته مد ورکوي او چیرې چې مد وي هلته قصر کوي او یا په مد کې زیاتوالی او کموالی کوي ، یا د وقف پر ځای وصل او د وصل پر ځای وقف کول جواز نلري .

همدارنګه د هر توري حق ادا شي (حرف د خپل مخرج څخه ادا شي او د حروفو حرکات تغیر نشي)، د مد او قصر حق ادا شي، د نون ساکن او تنوین حقوق ادا شي او همدارنګه د تجوید نور احکام په نظر کې ونیول شي.

دغه د تجوید کتاب د نړۍ له مهمو معتبرو مراجعو د دقیقو څېړنو وروسته په ساده او روانه لهجه ترتیب شوی

په آخر کښې د لوی خدای (جل جلا له) له دربار څخه غواړم چې د تجوید دغه کتاب د مسلمانانو لپاره ګټور وګرځوي (آمین )

حمدالله "شاکري"

دراسات الاسلامي – الاکادیمیة الاسلامیة العالمي

# لومړی فصل

## د قرآنکریم فضیلت

قرآنکریم د الله تعالی د جانبه ټول بشریت ته رحمت، هدایت او لارښوونه ده، قرآنکریم د اسلامي شریعت قانون دی، قرآنکریم د ټول طاغوت، باطل، رزائلو او منکراتو پر وړاندې د حقې او رښتنې الهې لارې لارښود کتاب دی، قرآنکریم د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم د رسالت میراث دی، نن زمونږ په عصر کې نه وحی شته او نه هم پیغمبر بلکې د الله تعالی او د هغه د مخلوق تر مینځ د ارتباط وسیله یوازې قرآن دی، د قرآن په نزول سره د وحی او رسالت سلسله ختمه شوې ده.

هر چا چې د قرآن لاره تعقیب کړه هغه د الله تعالی رضا حاصله کړه، او هر چا چې قرآن پرېښود هغه د طاغوت لاره اختیاره کړه او ګمراه شو.

څوک چې د الله تعالی رضا، هدایت، شرعي قانون او نظام، د عذاب څخه نجات او سعادت غواړي هغوی دې په قرآن منګولې و نیښلوي او څوک چې د قرآن څخه پرته بله لاره او بل قانون غواړي د هغه لپاره هدایت او سعادت نشته.

## د قرآنکریم د فضیلت څو مثالونه د قرآن په ژبه

١ - د الله تعالی رښتنی بر حق کلام دی :

ذَلِكَ الكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِلْمُتَّقِينَ (البقرة ٢).

ژباړه: دا د الله کتاب دی هیڅ شک پکې نشته د پرهیزګارانو لپاره لارښوونکی دی.

۲ - د ټولو خلکو د پاره هدایت دی:

كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ إِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ (ابراهيم ۱).

ژباړه: (ای پیغمبره !) دا کتاب مونږ تاته نازل کړی دی چې پرې خلک د هغوی د رب په مرسته له تیارو نه د رڼا په لور را وباسې.

د [الناس] کلمه عامه ده ، د ټولو خلکو لپاره.

۳ - قرآنکریم د پرهیزکارانو لپاره پند او هدایت دی.

وَهُدًى وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِينَ (المائده :۴۶).

ژباړه: او هدایت او پند دی لپاره د پرهیزګارانو.

[للمتقین] نه مراد رجوع کوونکي او حق ته غاړه ایښودونکي دي .

هَذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِينَ (آل عمران).

ژباړه :دا قرآن د عامو خلکو لپاره بیان او پرهیزګارانو لپاره هدایت او پند دی.

۴ - د مؤمنانو د پاره شفاء، رحمت او زېرى دی.

وَنُنَزِّلُ مِنَ الْقُرْآنِ مَا هُوَ شِفَاء وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ (اسراء ۸۲) .

ژباړه :او مونږ تاته هغه قرآن نازلوو چې د مؤمنانو لپاره شفا او رحمت دی.

۵- قرآنکریم د رحمت د نزول سبب دی، الله تعالی فرمايي: وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُواْ لَهُ وَأَنصِتُواْ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ (اعراف ۲۰۴).

ژباړه: او چې کله قرآن ولوستل شي نو ورته غوږ او چپ شئ ښايي چې پر تاسې رحم وشي.

۶ -قرآنکريم د زړه او روح سکون او اطمينان دی:

الله تعالى فرمايي : الَّـذِينَ آمَنُـواْ وَتَطْمَـئِنُّ قُلُـوبُهُم بِـذِكْرِ اللّهِ أَلاَ بِـذِكْرِ اللّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ (رعد:١٨).

ژباړه: هغه کسان چې ايمان يي راوړی او زړونه يي د الله (جل جلا له) په ياد آراميږي، خبر شئ چې د الله پاک په يادښت زړونه ډاډمن کيږي.

٧ -قرآن د هدايت سيده لاره ده:

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: وهو حبل الله المتين، وهو الذکر الحکيم، وهو الصراط المستقيم (الترمذي).

او دا (قرآن) د الله تعالى کلکه رسی ده، او دا (قرآن) د حکيم ذات (جل جلاله) ذکر دی او دا (قرآن) د هدايت سيده او مسقيمه لاره ده.

## د قرآن د زده کړي او نورو ته د ور زده کولو فضيلت

حضرت عثمان رضی الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:«خير کم من تعلم القرآن و علمه» (رواه البخاری).

ژباړه: په تاسو کې د ټولو نه بهتر او افضل هغه کس دی کوم چه د قرآن علم حاصل کړي او نورو ته يي هم وښايي .

رسول الله صلی الله عليه وسلم ابوذر رضی الله عنه ته وويل:

«يا أبا ذر! لأن تغدو فتعلَمْ آية من كتاب اللَّه، خير لك من أن تصلي مائة ركعة. ولأن تغدو فتعلَمْ بابا من العلَمْ، عمل بِهِ أَوْ لَمْ يعمل، خير من أَن تصلي ألف ركعة» (سنن ابن ماجه :ضعيف).

ژباړه: ای ابوذره ! کچيرې ته سحر لاړ شي او يو آيت د قرآن پاک زده کړې نو د سل رکعته نفلو نه بهتره دی، او کچيرې يو باب د علم زده کړې که

دغه وخت دې عمل پرې کړی وي يا نه نو د زرو رکعتونو نفلو کولو نه بهتر دی .

همدارنګه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:«مَن قرأ القرآن وعمل به ألبس والداه تاجاً يوم القيامة ضوءه أحسن من ضوء الشّمس في بيوت الدنيا فمَا ظنُّكم بالّذي عمل بهذا» (رواه أبو داود والحاكم، وقال: صحيح الإسناد).

ژباړه: چا چې قرآن ولوستو او په قرآن يې عمل وکړ نو د قيامت په ورځ به د هغه د والدينو په سر باندې داسې تاج ور په سر شي چې د هغې رڼا به د لمر د رڼا نه کوم چې د دنيا په کورونو کې وي ډيره ښايسته وي ددې وروسته رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: نو تاسې څه ګمان کوئ د هغه چا په باره کې چا چه خپله دا عمل کړی وي.

**د قرآنکريم د تلاوت فضائل**

ابن مسعود رضی الله عنه روايت کړی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي :« مَنْ قَرَأَ حَرْفًا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ فَلَهُ بِهِ حَسَنَةٌ، وَالحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا، لَا أَقُولُ الم حَرْفٌ، وَلَكِنْ أَلِفٌ حَرْفٌ وَلَامٌ حَرْفٌ وَمِيمٌ حَرْفٌ ». (رواه الترمذي والدارمی و سلسلة صحيحة).

ژباړه: چا چې د قرآن يو حرف ولوستلو، نو هغه لره يوه نيکي ده او د يوې نيکۍ لس چنده بدله ده (د وضاحت لپاره فرمايي :) زه دا نه وايم (يعني زما مطلب دا نه دی) چه الم يو حرف دی، بلکه الف يو حرف دی لام يو حرف دی او ميم يو حرف دی.

ابی سعید خدري رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: « يقول الرب عز وجل من شغله القرآن عن ذكري وعن مسألتي أعطيته أفضل ما أعطي السائلين وفضل كلام الله على سائر الكلام كفضل الله على خلقه ». (رواه الترمذی والدارمی و البیهقی فی شعب الا یمان).

ژباړه: د الله تبارک وتعالی ارشاد دی چه کوم سړی قرآن مجید مشغول وساتلو زما په ذکر سره او زما نه په سوال او دعا کولو سره زه به هغه ته د هغې نه غوره ورکړم کوم چه سوال کوونکو او دعا کوونکو ته يې ورکوم او د نورو خبرو په پرتله د الله تعالی کلام يا خبرې ته داسې عظمت او فضيلت حاصل دی لکه د خپل مخلوق په مقابله کې چه الله تعالی ته فضیلت حاصل دی .

## د ماهر قرآن مقام او منزلت:

عن عايشه قالت رسول الله صلی الله علیه وسلم :«الماهر بالقرآن مع السفرة الكرام البررة، والذي يقرأ القرآن ويتتعتع فيه وهو عليه شاق له أجران» (رواه مسلم).

ژباړه: د حضرت عايشه رضی الله عنها نه روايت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي: چا چې په قرآن کې مهارت حاصل کړی وي او هغه د ياد نه يا د مخې نه په بهتره طريقي سره او بې تکليفه روان لولي هغه به د معزز وفا دارو او فرمانبردارو فرښتو سره وي او کوم بنده چه قرآن پاک د ښه نه يادولو يا د نه روانېدو په وجه سره په زحمت او مشقت سره داسې

وايي چه په هغی کې نښلي نو هغه ته به دوه اجرونه ورکول کیږي (یو دتلاوت او بل د زحت او مشقت) .

## د قرآنكريم شفاعت:

عن ابى اُمامة قال سمعت رسول الله صلى الله عله وسلم يقول:«اقرأوا القرآن فإنه يأتي يوم القيامة شفيعاً لأصحابه ،اقرَؤوا الزَّهرَاوَين: البقرةَ وسورةَ آلِ عمرانَ. فإنهما تأتِيان يومَ القيامةِ كأنهما غَمامتانِ. أو كأنهما غَيايتانِ. أو كأنهما فِرْقانِ من طيرٍ صوافَّ. تُحاجّان عن أصحابهما. اقرَؤوا سورةَ البقرةِ. فإنَّ أَخْذَها بركةٌ. وتركَها حسرةٌ. ولا يستطيعُها البَطَلَةُ».(رواه مسلم).

ژباړه: د حضرت امامه رضی الله عنه نه روایت دی چې هغه وایي: د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه مې اوریدل چې ویل یې: قرآن لوله قرآن د قیامت په ورځ د خپلو لوستونکو شفیع جوړیږی، را ځی به خاصتاً (الزهروین) یعني دا دوه اهم سورتونه (البقره .ال عمران) لوله هغه به د قیامت په ورځ داسې راځي لکه چه د وریځی ټوټه وي یا سایبان وي یا د مرغیو د سیل په شان به وي. دا دواړه سورتونه به د قیامت په ورځ د خپلو لوستونکو څخه دفاع کوي ،او ویې فرمایل چه لوله سوره بقره ځکه چه ددې حاصلول ډیر برکت لري، ترک یې پښېمانتیا ده او اهل بطالت ددی طاقت نه لری.

د اهل بطالت نه مراد ساحران او کوډګر دي یعنې څوک چې سورت البقرة وایي د هغه تلاوت زیات برکت لري او د هغه په لوستونکې باندې سحر او جادو کوم اثر نه کوي.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«الصیام والقران یشفعان المعبد یقول الصیام ای رب انی منعته الطعام والشهوات بالنهار فشفعنی فیه ویقول القران منعته النوم باللیل فشفعنی فیه فیشفعان» (رواه البیهقي، احمد و حاکم).

ژباړه: روژه او قران دواړه د بنده شفاعت کوي ،روژه به وایي: ای پروردګاره ! ما دا بنده د ورځې د خوړلو،څښلو او نفسی خواهش پوره کولو نه منع کړی ؤ – نن زما شفاعت دده په حق کې قبول کړه، او قران به وایي ما دی د شپې له خوب او آرام نه منع کړی ؤ الهی ! نن دده په حق کې زما شفاعت قبول کړه، د روژې او قران دواړو شفاعت به ددې بنده په حق کې قبول شي (ددی بنده سره به د مهربانۍ او مغفرت معامله وشي او دده د پاره به د جنت فیصله وشي او په خاصو رحمتونو سره به وپالل شي).

**دری ډلې به بې حسابه جنت ته داخلیږي:**

«رجلٌ قرأَ القُرآنَ ابْتغاءَ وجْهِ اللّهِ وأمَّ به قومًا وهُمْ به راضُونَ، وداعٍ يَدعُو إلى الصلواتِ ابْتغاءَ وجهِ اللّهِ، ورجلٌ أحْسنَ فِيما بينهُ وبينَ ربِّهِ، وفِيما بينهُ وبينَ موالِيهِ» (رواه الطبرانی و الترغیب و الترهیب للمنذري).

ژباړه: یو هغه سړی چې د الله تعالی لپاره یې قرآن ولوستلو او داسې امامت یې وکړ چې مقتدیان ترې راضی وو، دوهم هغه سړی چې صرف د الله تعالی

د رضا لپاره خلک لمانځونو ته بولي ،دریم هغه سړی چې د خپل رب (جل جلاله) سره هم ښه معامله ساتي او د خپلو ماتحتو(تر لاس لاندې خلکو) سره هم.

**د قرآن تلاوت د غفلت څخه نجات دی:**

ابی هریرة رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«من قرء عشر ايات في ليلة لم يكتب من الغافلين» (رواه حاکم ،حدیث صحیح).

ژباړه: څوک چې لس آیتونه د شپې تلاوت کړي هغه به د غافلینو نه شمارل کیږي.

بلکي د قرآنکریم خاص حق دی، په حدیث شریف کې راغلی دی چې:

«يا أهل القرآن لا تتوسدوا القرآن واتلوه حق تلاوته من آناء الليل والنهار، وأفشوه وتغنوه وتدبروا ما فيه لعلكم تفلحون، ولا تعجلوا ثوابه فإن له ثوابا» ( رواه البيهقي و مشكاة المصابيح).

ژباړه: ای اهل قرآن ! قرآن خپله تکیه او سهارا مه جوړوئ بلکه د ورځې او د شپې په وختونو کې ددې تلاوت کوئ لکه څنګه چه دده حق دی او دا خوروئ او دا په دلچسپۍ سره او په مزه مزه سره لولئ او په دې کې تدبر کوئ او هیله ساتئ چه په دې سره به تاسې کامیابي مومئ او ددې د عاجلې معاوضې اخستلو فکر مه کوئ. د الله تعالی د طرف نه ددې عظیم الشان ثواب او معاوضه پخپل وخت باندې ورکونکې ده.

## د قرآنکریم په تلاوت کوونکو د سکنې نزول:

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«مَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِي بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِ اللَّهِ يَتْلُونَ كِتَابَ اللَّهِ وَيَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ إِلَّا نَزَلَتْ عَلَيْهِمْ السَّكِينَةُ وَغَشِيَتْهُمْ الرَّحْمَةُ وَحَفَّتْهُمْ الْمَلَائِكَةُ وَذَكَرَهُمْ اللَّهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ» (رواه المسلم).

ژباړه: هیڅ ډله په یوه کور کې د الله تعالی له کورونو څخه د قران د تلاوت او درس او تعلیم د پاره نه جمع کیږي مګر دا چې په هغوی باندې سکون نازلیږي او له هغوی نه رحمت احاطه کیږي او پریښتې هغوی احاطه کوي او الله تعالی هغوی د هغه چا په مجلس کې یادوي چې له ده سره دي.

## د قرآنکریم د تلاوت آداب

١ - له بې اودسی او جنابت څخه د بدن پاکوالی.

٢ - مستحب ده چې د تلاوت په وخت کې سړی د قبلی په لوري ناست وي.

٣ - د تلاوت په شروع کې د «اعوذ بالله من الشیطان الرجیم» ویل واجب دي لقوله تعالی:

]فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ] (النحل:٩٨).

ژباړه: او کله چې د قرآن په ویلو پیل وکړې، نو د الله په نوم له رټل شوی شیطان نه پناه وغواړه.

٤ - هر سورت په « بِسْمِ اللهِ الرَّحْمنِ الرَّحِيمِ» پیل کول په خاص توګه د فاتحی سورة په شروع کې.

٥ - قرآن په ترتیل سره لوستل [ورتل القرآن ترتیلا ] د ترتیل په باره کې شا عبدالعزیز رحمه الله په خپل تفسیر کې لیکلي دي چه ترتیل په لغت کې

صفا او واضح لوستلو ته وايې او په شريعت کې د څو څيزونو لحاظ ساتلو سره تلاوت کولو ته وايې چه هغه څيزونه په لاندې ډول دي:

الف – د حروفو صحيح ادا کول يعنى د خپل مخرج څخه چه د ضاد پر ځاى دال يا ظا تلفظ نشي.

ب – د وقف پر ځاى په ښه شان سره دريدل چه وصل او قطع يعنى يو ځاى کول او جلا کول د کلام بې ځايه نشي.

ج – حرکتونه سره کډوډ نشي زور،زير او پيښ په ښه شان ښکاره ادا شي.

د – آواز لږ اوچتول چې د قرآن الفاظ له ژبې اوزي او عوږونه يې واوري.

ه – قرآن په ښه آواز دردونکې غږ تلاوت کول چې په زړه اثر وکړي دردناک آواز په زړه ژر اثر کوي.

و – شد او مد ښه ښکاره کول چې ددى په ښکاره کولو سره د قرآن لوى شان ښکاره کيږي او له اثر سره مدد کوي.

ذ – د رحمت او عذاب د آيتونو حق ادا کول.

۶ - د تلاوت پر مهال حاضرينو ته واجب دى چې چوپ وي (خبرې به نه کوي) او قرآن ته به غوږ وي ،لقوله تعالى :[ وَإِذَا قُرِىءَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُواْ لَهُ وَأَنصِتُواْ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ](اعراف ۲۰۴). ژباړه: او چې کله قرآن ولوستل شي نو ورته غوږ او چپ شئ ښايې چې پر تاسې رحم وشي.

۷ - قاري او اوريدونکى ته په کار ده چې په خشوع او ادب سره خپل زړه او حواس د قرآن تلاوت ته متوجه کړي چې دا د سکوت له غوښتنې څخه ده لکه په مخکې آيت کې. مګر د قرائت پر مهال فرياد، چيغى او شور ما شور

جوړل د کافرانو او مشرکانو صفت دی ځکه کله به چې قرآن لوستل کیده نـو مشـرکانو بـه یولـه بلـه سـره خبرې چیغې او شورماشـور جوړولـو چې قرآنکریم ورته داسې اشاره کړي ده .

[وَقَـالَ الَّـذِينَ كَفَـرُوا لاَ تَسْـمَعُوا لِهَـذَا الْقُـرْآنِ وَالْغَـوْا فِيـهِ] (فصلت: ٢٦) .

ژباړه: او کافرانو ویل دغه قرآن ته غوږ مه نیسئ او هغه (مهال) بیهوده خبرې کوئ .

٨ - قاري باید تر خپله وسه قرآنکریم په ښه صوت سره تلاوت کړي ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایې :«لیس منا من لم یتغن بالقرآن » (البخاري).

ژباړه: هغه له مونږ څخه نه دی چه قرآن په ښه آواز نه لولی. په پورته حدیث شریف کې «یتغن بالقرآن» څخه مطلب دا دی چې د قرآنکریم لوستونکی به قرآن په ښه صوت او حد اقل دومره جهر او زوره سره وایي چې خپله یې واوري، قرآن به په تجوید او خشوع سره وایي او په هغه کې به تدبر کوي تر څو په زړه باندې اثر وکړي. او دعلم حدیث شارحین وایي چې د «لیس منا» څخه مطلب دا نه دی چې څوک په ښه صوت او تدبر او خشوع سره قرآن نه وایي نو هغه د امت اهل دین څخه نه دی، بلکي د هغه مطلب دا دی چې زمونږ په سنتو برابر نه دی یعنې داسې کول د سنتو خلاف دی، څوک چې قرآن په تجوید، تدبر او ښه صوت سره نه وایي نو داسې کول ګناه ده.

۹ - قاري باید خپل صوت د سندرو ویونکو،فاسقانو یا یهودو او نصاراؤ د دینی آوازونو سره تشبح نه کړي او د ښه صوت په کوښښ کې د بې ځایه تکلف نه ځان وساتي.

۱۰- قاري او اوریدونکی به د قرآن په آیتونو کې تدبر او فکر کوي او د هغه د معنی او مقاصدو په پیداکولو کې به فکرکوي.[أَفَلاَ يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ] (النساء: ۸۲) ژباړه: ایا په قرآن کې تدبر او فکر نه کوي .

۱۱- د قرائت په وخت کې په خشوع کې مبالغه کول او قصداً د ژړا کولو کوښښ مستحب دی تر څو د الله تعالی عظمت او لوېي په یاد راوړل شي چې قرآن د هغه کلام دی.

۱۲- د قرآنکریم د اوامرو اطاعت کول او د هغه له مخالفت څخه ځان ساتل ځکه قرآن به د قیامت پر ورځ هغه چا ته حجت ،نور او شفاعت وي چې عمل یې وربانديې کړی وي.

مګر هغه څوک چې قرآن تلاوت کوي خو په قرآن عمل نه کوي او اوامرو څخه یې سرغړونه کوي نو قرآن به د قیامت په ورځ پر داسې کس لعنت وایې.

۱۳- یو مسلمان ته پکار ده چې حد اقل په څلویښتو ورځو کې یو ځل قرآن ختم کړي او سنت ده چې هره ورځ یو جزء تلاوت کړي یا حد اقل د ورځې لس آیته تلاوت کړي ترڅو د غافلانو په ډله کې حساب نه شي.

۱۴- مستحب ده چې قاري د قرآن په ختم کې دعا وکړي نور هم حاضر کړي چې په دعا کې ګډون وکړي ځکه چې دا د دعا د استجابت او د الله تعالی د رحمت د نزول وخت دی.

۱۵- باید د قرآن تلاوت خاص د الله تعالی د رضا لپاره وي ځکه چې د قرآن تلاوت له لویو عباداتو څخه دی نو عبادت د غیر الله لپاره نه وي.

۱۶- د قرآنکریم په تلاوت باندې اجرت اخیستل حرام دي، مګر په تعلیم باندې اجرت د متأخرینو په نزد جایز دي.

و بعض مشائخنا رحمهم الله تعالی استحسنوا الاستئجار علي تعليم القرآن لظهور التوالي في الامور الدنية فهذا ما افتى به المتاخرين مخالفين ما ذهب اليه امام وصاحباه بالضرورة فی عدم جواز الاستئجار علی تلاوة (ردالمختار کتاب الاجارة ۵۶,۵۵,۶).

وقال في "الهداية": الأصل أن كل طاعة يختص بها المسلم، لا يجوز الاستئجار عليها عندنا لقوله -عليه السلام-: (اقرؤوا القرآن ولا تأكلوا به).

۱۷- د تلاوت د سجدې په اوریدو سره د تلاوت سجده کول.

## دوهم فصل

### د تجوید دعلم تعریف او اهمیت

**١- د تجوید تعریف :**

تجوید په لغت کې تحسین (ښه او ښایسته کولو) ته وایي په اصطلاح کې عبارت دی له اداء کولو د هر توري (حرف) پخپل مخرج (ځای د اداء) کې، د آدابو او صفاتو له مراعاتولو سره .

**٢- د تجوید د علم موضوع یا هدف :**

د قرآن لوستل په صحي توګه لکه څنګه به چې رسول الله صلی الله علیه وسلم اصحابو کرامو رضی الله عنهم ته قرآن کریم لوستلو،یعنی د قرائت د احکامو حفاظت کول لکه: ادغام ، اظهار ، اقلاب ، اخفاء ، مد ، غُنه په خپل ځای کې عملي شي او حروف له خپل مخرج څخه ادا شي یعنې د تجوید د ټولو احکامو په نظر کې نیولو سره د قرآن کریم واضح لوستل دي .

**٣- د تجوید د زده کړې حکم :**

د تجوید د علم زده کړه پر مسلمانانو باندې فرض کفایي ده ، یعنې که ځینې کسان یې حاصل کړي د نورو غاړه ورباندې خلاصیږي او که ټول یې ترک ټول به ګناهکار وي .

مګر په تجوید باندې عمل کول یا د تجوید تطبیق په قرائت کې پر هر مسلمان نارینه او ښځینه فرض عین دی .

يرى أكثر علماء التجويد أن تعلم التجويد فرض كفاية على المسلمين ، إذا قام به البعض سقط الإثم عن الباقين، وإن لم يقم به أحد أثموا جميعا. أما العمل به، أي تطبيق أحكام التجويد أثناء القراءة، ففرض عين على كل مكلَّف (برنامج الأحكام التجويد- براوية حفص عن عاصم ) .

**۴- د تجويد اهميت :**

د قرآن كريم لوستل په داسې ډول چې له غلطيو مخنيوى وشي يعنې د تجويد د احكامو مراعاتول، كه د تجويد احكام مراعات نشي نو لحن (غلطي) مينځ ته راځي.

## د قرائت د شروع مسائل

استغاذه او بسمله (اغوذ بالله او بسم الله) :

**اول- استغاذه :**

تعريف : استغاذه د شيطان له شر او وسواسو څخه پر الله تعالى پنا غوښتلو ته وايي چې متن يې داسې دى [أعوذ بالله من الشيطان الرجيم] او يا [ أعوذ بالله السميع العليم من الشيطان الرجيم] .

**د استغاذه احكام :**

۱- د قرائت د شروع په وخت كې د استغاذه ويل واجب دي ، لقوله سبحانه وتعالى : لقوله تعالى: [فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ] (النحل:۹۸).

ژباړه: او كله چې د قرآن په ويلو پيل وكړې، نو د الله په نوم له رټل شوى شيطان نه پناه وغواړه.

۲- د لمانځه په مینځ کې مطلقاً خفیه (په پټه ) ویل کیږي هغه که جهري ، یا خفیه ، فرض او یا نفل لمونځ وي .
۳- د لمانځه څخه بهر په خفیه قرائت کې خفیه لوستل کیږي .
۴- په جهري قرائت کې کچیرې قاري تنها وو اختیار لري که خفیه یې وایي او یا په جهري توګه مګر که قرائت په مجلس کې کېده په جهر به لوستل کیږي .
۵- کچیرې قرائت قصداً قطع شي لکه : خبرې کول ، خوراک کولو او نور ، نو په دې صورت کې د استغاذه اعاده او لوستل ضرور دي .
۶- کچیرې قرائت د ضرورت پر بنا قطع شي لکه : توخی ، پرنجی او نور ، نو په دې صورت کې د استغاذه اعاده کول لازم نه دي .
۷- د درس په پیل کې د استغاذه په جهر لوستل .

**دوهم - بسمله :**

تعریف : بسمله په لغت کې په ژبه سره د الله تعالی نوم اخیستل او په اصطلاح کې (بسم الله الرحیم الرحیم ) ویلو ته وایي .

**د بسمله احکام :**

۱- د سورتونو په پیل کې د بسم الله ویل سنت دي پرته له سورت توبه څخه .
۲- کچیرې قرآئت د سورت له کومې برخې پیل شي هغه که سوره توبه یا نور سورتونه وي د بسم الله ویل مستحب دي .

**د استغاذه اوبسمله د فصل (قطع ) اووصل (پیوسته) صورتونه:**

کله چې د اغوذ بالله او بسم الله په ویلو کوم سورت پیل کیږي پرته له سوره توبه څخه او د سورت له کومې حصې څخه پیل کیږي نو د اسغاذه ، بسمله او سورت د قطع او وصل څلور جایز صورتونه دي :

١- فصل یا قطع کل : په دې معنی چې د اغوذ بالله او بسم الله ویلو په آخر کې پر دواړو وقف وشي او بیا سورت پیل شي .

٢- وصل کل : په دې معنی چې اغوذ بالله له بسم الله او بسم الله ویل له سورت سره وصل شي .

٣- فصل اول وصل ثاني : په دې معنی چې د اغوذ بالله ویلو په آخر کې وقف وشي او بسم الله د سورت له برخې سره وصل شي .

٤- وصل اول فصل ثانی : په دې معنی چې اغوذ بالله د بسم الله سره وصل شي او د بسم الله په آخر کې وقف وشي او بیا سورت پیل شي .

**د بسمله اوسورة ترمینځ د فصل اووصل صورتونه :**

١- فصل یا قطع کل : په دې معنی چې د مخکې سورت په آخر باندې وقف وشي او بیا په بسم الله وقف او بیا بل سورت پیل شي.

٢- وصل کل : په دې معنی چې آخر د سورت له بسم الله او بسم الله له وروسته سورت سره وصل شي.

٣- فصل اول وصل ثاني : په دې معنی چې په آخر د سورت وقف وشي او بسم الله د راتلونکي سورت سره وصل شي .

۴- وصل اول فصل ثاني : په دې معنی چې آخر د سورت له بسم الله سره وصل شي او بسم الله په آخر باندې وقف وشي .

د استغاذه او بسمله د قطع او وصل خلاصه

| التعوذ - البسملة | سورت | حکم |
|---|---|---|
| قطع | قطع | جایز |
| قطع | وصل | جایز |
| وصل | وصل | جایز |
| وصل | قطع | جایز |

## په قرائت کې لحن (غلطي )

په قرائت کې لحن (غلطي ) په دوه ډوله ده : لحن جلي او لحن خفي .

**۱- جلي لحن :**

داسې ښکاره غلطي ده چې د کلمې په معنی کې بدلون رامینځ ته شي لکه په لاندې حالاتو کې:

الـف ) : د يـوه حـرف بدليـدل پـر بـل حـرف بانـدې مثلاً د "ثـاء" حـرف پـه "سين" سره تلفظ يا د "ذال" حرف په "زاء" سره تلفظ كول، داسې چې حرف له خپل مخرج څخه ادا نشي دا يوه ښكاره غلطي ده .

ب ) : د کلمې د حروفو یو حرف کمول لکه "هُمُ الْخَاسِرُونَ" داسې لوستل "هُمُ الْخَاسِرُن" د "و" حرف څرګند نه کړي .

ج ) : په حرکاتو کې بدلون (زور ، زیر ،پیښ) مثلاً د "یُوصَلَ" په کلمه کې " یُوصَلُ" د لام حرف د زور پر ځای پیښ تلفظ شي .

د) : یوه کلمه داسې تلفظ شي چې د هغه د حروفو په تعداد کې زیاتوالی راشي ، د مثال په ډول "الحمدلله" د "دال" حرف د پیښ او د "ها"حرف زېر داسې اوچت تلفظ شي چې د "واو" یا "یاء" آواز ترې پیدا شي لکه: په «الحمد» کې د "دال" حرف پیښ دومره کش کړ شي چې «واو» تلفظ شي لکه : الحمدو.

د جلي لحن مرتکب کیدل حرام دي او په ځېنو ځایونو کې د هغه له کبله معنا بدلیږي او لمونځ فاسدیږي .

**خفي لحن :**

خفی لحن (پټه غلطي ) د هغو قواعدو پرېښودل چي د تورو د ښایست سره اړه لري .

مثلاً هر کله چې د "را" حرف زور یا پیښ ولري " را" ډکه لوستل کیږي او که څوک هغه باریکه ولولي پټه غلطي بلل کیږي، یا دا چې په کوم ځای کی اخفاء یا اظهار ونه شي ، او یا دا چې په یوه کلمه کې ادغام کیږي ادغام ونه شي بلکي د ادغام پر ځای اظهار تر سره شي ، چې په پورته صورتونو کې خفي لحن مینځه راځي او داسې کول مکروه دي ځان ساتل ورڅخه پکار دي .

**د عربې ژبې توري**

د عربې ژبې ۲۸ توري دي چې په لاندې ډول دي :

ا (الـف)، ب (بـا)، ت (تـا)، ث (ثـا)، ج (جـيم)، ح (حـا)، خ (خـا)، د (دال)، ذ (ذال)، ر (را)، ز (زا)، س (سـين)، ش (شـين)، ص (صـاد)، ض (ضـاد)، ط (طا)، ظ (ظا)، ع (عين)، غ (غين)، ف (فا)، ق (قـاف)، ک (کاف)، ل (لام)، م (ميم)، ن (نون)، هـ (ها)، و (واو)، ی (يا).

د عربې ژبې تورې په دوه ډوله ويشل شوي دي شمسي او قمري :

**شمسي توري :**

شمسي تورې هغه تورو ته وايي چې کله په هغه باندې (ال) علاوه شي نو لام نه تلفظ کيږي بلکي شمسي توری مشدد ګرځي لکه:الشّجرة ، السّماء ، السّبت.

شمسي توري څلوارلس دي لکه :( ت – ث – د – ذ - ر- ز–س –ش –ص – ض –ط –ظ –ل- ن ).

**قمري توري :**

قمري تورې هغه تورې ته وايي چې کله په هغه باندې (ال) علاوه شي نو لام تلفظ کيږي.

قمري توري هم څلوارلس دي لکه : ( همزه – ب –ج –ح –خ –ع –غ –ف –ق –ک –م –و –هـ –ی ) .

**د الف او همزې تر مينځ فرق :**

د الف توری هميشه ساکن (بې حرکته ) وي او همزه د سکون څخه علاوه حرکت هم قبلوي .

**د همزې ډولونه :**

همزه دوه قسمه ده : همزه وصل (ا) او همزه قطع (أ) .

**همزه وصل :** هغه همزه ده چې کله د کلمې په پيل کې راشي تلفظ کيږي مګر کله چې د کلمې په مينځ کې راشي نه تلفظ کيږي .

د کلمې په پيل کې لکه :العمَّ ، المدرسة

د کلمې په مينځ کې لکه : ما اسْمُکَ

همزه قطع : هغه همزه ده چې په هر حالت کې تلفظ کيږي .

**حرکات**

په عربي ژبه کې درى قسمه حرکات دي لکه : فتحه (زَبر ـَ) ، کسره (زير ـِ) ، ضمه (پيښ ـُ) .

**سکون :**

سکون : سکون عبارت د يوې وړې داېرې څخه دی چې د توري د پاسه ليکل شوی وي چې د عدم حرکت (حرکت نه لرلو) معنی لري . لکه : حَسَنْ

**تنوين :**

تنوين عبارت دی له دوه زبرونو ، دوه زېرونو او دوه پيښونو څخه (ـً،ـٍ ، ـٌ) چې د حرف د پاسه يا لاندې ليکل شوي وي او تنوين په اصل کې زيات شوي ساکن نون دی چې علماؤ د دغه نون زائده پر ځای تنوين ټاکلی دی تر څو د اصلي نون سره يې فرق وشي او تنوين يوازې په اسم کې راځي،لکه : جديداً ، محمدٌ .

**شد :**

الشدة په لغت کې شدت او سختی ته وايي او په اصطلاح کې کله چې دوه توري يو په بل کې مدغم يا داخل شي مشدد (شد لرونکی ) لوستل کيږي يعني شد د حروفو د تکرار نښه ده لکه : مدَ = مدَدَ = مدّ

# دريم فصل

## د حروفو مخرجونه(مخارج)

مخارج د مخرج جمع ده او مخرج د وتلو ځای ته وايي .

د تجويد د علم په اصطلاح کې مخرج هغه ځای دی کوم چې توری يا حرف ورځخه ادا کيږي .

مخرجونه عموماً په دوه ډوله دي .

- اجمالی مخرجونه
- تفصيلی مخرجونه

**اجمالي مخرجونه پنځه دي:**

الحلق (ستونی ) .

اللسان (ژبه ) .

الشفتان (شونډې) .

الخيشوم ( د پزې آخري برخه ) .

الجوف (د خولې خاليګاه ) .

**تفصيلي مخرجونه :**

د تفصيلي مخرجونو په شمير کې د علماء کرامو تر مينځ اختلاف دی .

لومړی قول : د جمهورو قرآء کرامو په نزد د تفصيلي مخرجونو شمير اوولس (١٧) دی .

دوهم قول : د سيبيويه او الشاطبي په نزد د تفصيلي مخرجونو شمير (١٦ ) دی ځکه چې د هغوی په نزد «جوف» مخرج نه دی .

دريم قول : د فراء په نزد د تفصيلي مخرجونو شمير (۱۴) دی ځکه د هغه په نزد (جوف) مخرج نه دی او همدارنګه د «لام، راء ، نون) مخرج يو بولي.
راجح او جمهور قول دا دی چې د حروفو د مخرجونو شمير اوولس (۱۷) دی چې ان شاء الله په تفصيل سره به بيان شي .

مخکې لدې چې د حروفو مخرجونه وپيژنو لمړی بايد د يوه حرف د مخرج د ادا کولو طريقه زده کړو هغه داسې ده کله چې د يوه حرف مخرج معلوموو لـومړی همغـه حـرف سـاکنوو(زور ، زېـر او پيښ يې لـرې کـوو ) او يـوه زور لرونکې همزه وربانـدې داخلـوو هـر چيرې چې آواز ختم شي همغـه د حـرف مخرج دی .

مـثلًا کـه زور لرونکې همـزه (اَ) پرسـاکنه ب (بْ) داخلـه کـړو نـو (اَبْ) تـرې جوړيږي ،او کله يې چې تلفظ کـړو نـو معلـوميږي چې د (ب) مخـرج د دواړو شونډو ترمينځ دی کله چې سره ولګيږي .

پخـوا لـدې چې د حروفـو مخرجونـه بيـان کـړو لـومړی بايـد د ژبې برخې او د غاښـونو نومونـه او تفصـيل بيـان کـړو ځکـه څـو پـورې چې د ژبې برخې او غاښونه ونه پيژندل شي تر هغه پورې د مخارجو پيژندل ګران دي .

## أقسام اللسان (د ژبې برخې او اقسام )

أقصى اللسان ( د ژبې آخري برخه) .

وسط اللسان ( د ژبې منځنۍ برخه ) .

حافة اللسان ( د ژبې اړخ ) .

طرف اللسان ( د ژبې بیرونی برخه)

رأس اللسان ( ژبې سر یا څوکه ) .

## الأسنان(غاښونــــه)

د بـالغ انسـان د غاښـونو شـمیر زیـاتره (۳۲) وي چې (۱۶) یې پـه پاسـنۍ او (۱۶) په لاندینۍ زامه کې موقعیت لري.

غاښونه عموماً پر څلورو برخو ویشل شوي دي( ثنایا ، رباعیات ، انیاب ، اضراس).

۱- ثنایا غاښـونه : مخـامخ څلـور غاښـونه دي چې پورتـه یې ثنایـا علیـا او کښـته تـه یې ثنایا سـفلی بلـل کیږي او ټـول څلـور کیږي چې دوه یې پورتـه اودوه یې ښکته موقعیت لري.

۲- رباعي(یا رباعیات) غاښونه: د ثنایا غاښـونو تـر څنگ چې یو ښي اړخ ته او بل هم کیڼ اړخ ته واقع وي دوه په پاسنۍ ژامه او دوه په لاندینۍ ژامه کې موقعیت لري چې ټول څلور کیږي .

۳- انیـاب غاښـونه : د رباعي غاښـونو ښـي او کـیڼ اړخ تـه دوه پورتـه او دوه کښته غاښونه دي چې ټول څلور کیږي (ناب په عربي کې نیش یا میخ شکله ته وایي یعنې ډیر تیز یا تیره غاښـونه دي).

۴- اضراس غاښونه: اضراس شل غاښونه دي چې لس يې په پورته ژامه کې او لس يې په ښکته ژامه کې موقعيت لري چې پر دريو برخو ويشل شوي دي:

الـف) ضـواحک: ضـواحک څلورغاښـونه دي چې د انيـابو پـه څنـګ کې موقعيت لري (دوه يې پورته اودوه يې ښکته دي).

ب) طواحن : طواحن د ضواحکو په څنګ کې دولس (۱۲) غاښونه دي چې شپږ يې پورتـه اوشپږ يې ښـکته موقعيت لـري چې دا غاښـونه د ژرنـدې دغاښونو په نامه هم ياديږي.

ج) نواجـذ : نواجـذ څلـور آخـري غاښـونه دي چې د طواحنـو پـه څنـګ کې موقعيت لري دوه يې پورته اودوه يې ښکته دي.

اوس به د الله تعالی په توفیق سره د حروفو مخرجونه په تفصیل سره بیان کړو.

**اول: الحلق (ستونی )**

په حلق کې دری مخرجونه دي (اول د حلق، وسط یا مابین د حلق، آخر د حلق).

له ستوني یا حلق څخه شپږ حروف په لاندې ډول ادا کيږي :

د حلق له شروع یا اولي برخي څخه یعنې د خولې له طرفه "غ" او "خ" ادا کيږي لکه: ( أَغْ ) (أَخْ).

د حلق له منځنۍ برخې څخه "ع" او "ح" ادا کيږي لکه: (أَعْ ) (أَحْ ).

د حلق له آخري برخې څخه یعنی د سینې له طرفه "همزه" او" ها" ادا کيږي لکه (أَءْ) (أَهْ)

پدې هکله یو شاعر داسې وایي:

حرف حلقی شش بود ای باوفا همزه ها وعین حا وغین وخا

**دوهم: اللسان(ژبه)**

په ژبه کی لس مخرجونه دي چې ۱۸ حروف ورڅخه ادا کيږي.

**۱- د"ق" مخرج :**

کله چې د ژبی پای یا آخره برخه له نرم تالو سره ولګیږي د "ق" توری ادا کیږي .

**۲- د "ک" مخرج:**

د "ک" مخرج هم د"ق" په څیر د ژبې پای له تالو سره لګېدو سره تلفظ کېږي مګر دومره توپیر دی چې د قاف له مخرج څخه لږ بیرون د خولې طرف ته او د هغه د تلفظ پر مهال کوچنۍ ژبه آزاده وي او د ژبی په پای پورې نه سرېښېږي .

**۳- د " ض " مخرج :**

کله چې د ژبې یو اړخ له ښي یا چپ طرف پاس اضراس غاښونو له داخلي دیوال یا څنګ سره ولګول شي د "ض" توری تلفظ کېږي، البته له چپې خوا څخه یې ادا کول آسانه دي .

مګر له ښی خوا څخه یې ادا کول زیات دي .

إحدى حافتي اللسان مع ما يحاذيها من الأضراس العليا: ومنه يخرج أدق حروف العربية نطقا وهو حرف الضاد (ض). وخروج الضاد من حافة

اللسان اليسرى أسهل وأكثر استعمالا من الحافة اليمنى (برنامج الاحكام التجويد ) .

خو پام باید وشي چې ض د "ظ" او "ذ" په څیر ادا نه شي .

**۴- د " ل " مخرج :**

کله چې د ژبې بیروني برخه یا «طرف اللسان» د پاس ثنایاغاښونو له تالو سره ولګول شي د " ل" توری ادا کیږي .

او ځینې علماء کرام وایي : کله چې د ژبې بیرونی طرف یا د ژبې اړخ د پاسنیو ثنایا ، انیاب ، رباعي او ضواحک له تالو سره ولګول شي د " ل" توری ادا کیږي .

**۵- د " ن " مخرج :**

کله چې د لام د مخرج نه لږ کښته د ژبې بیرونۍ برخه (چې په عربی کی ورته طرف لسان او په فارسي کې ورته نوک زبان وايي) د پاس تالو سره د ثنایا ، رباعیاتو غاښونو مخامخ ولګول شي د "ن" توری اداکیږي .

**۶- د " ر" مخرج :**

کله چې د ژبې نوک یا طرف لسان او د هغه د شاه څه برخه د پاس غاښونو (ثنایا ، رباعیاتو ) د تالو سره ولګول شي د "ر" توری ادا کیږي .

**۷- د "د،ت, ط" مخرج :**

کله چې د ژبې نوک د پورته ثنایاوو له بیخ سره ولګیږي د "د" ، "ت" او"ط" توري ادا کیږي ،خو دومره توپیر شته چې د" ط " حرف د استعلاء د صفت د لرلو له کبله ډک ادا کیږي او د "دال" او"تا" حروف تش یا باریک ادا کیږي .

**۸- د"ذ،ث ،ظ" مخرج :**

کله چې د ژبې نوک د پورته ثنایاوو له څوکې(سر) سره ولګیږي د (ذ،ث ، ظ ) حروف ادا کیږي خو دومره توپیر شته چې د " ظ " حرف د استعلاء د صفت د لرلو له کبله ډک ادا کیږي او د " ذال " او" ثا " حروف تش یا باریک ادا کیږي .

**٩- د"س،ز،ص" مخرج :**

کله چې د ژبې څوکه د لاندنیو ثنایاوو د داخل طرف سره ولګول شي نو د "ز،س،ص" توري ادا کیږي خو دومره توپیر شته چې د" ص" حرف د استعلاء د صفت د لرلو له کبله ډک ادا کیږي او د " ز " او" س " حروف تش یا باریک ادا کیږي .

**۱۰- د"ج،ش،ي" مخرج :**

کله چې د ژبې منځنۍ برخه د د پاس تالو سره ولګیږي نو د "ج ، ش،ي" توري تلفظ کیږي .

او دلته د «ي» د حرف څخه غیر مدي «ي» مطلب ده .

**دریم: شونډې**

په شونډو کښې دوه مخرجونه دي: د "ف" مخرج او د "ب، م، و" مخرج چې څلور توري په لاندې ډول ورڅخه ادا کیږي :

۱- کله چې پاسنۍ او لاندینۍ شونډې سره ولګیږي د "ب" او "م" توري ادا کیږي خو دومره توپیر شته چې "ب" د شونډو له لانده (داخل) طرف څخه او "م" د شونډو له وچ(بیرون) طرف څخه ادا کیږي او د "م" په ادا کولو کې د خیشوم مخرج هم برخه اخلي .

او کله چې دواړه شونډې د ګل د غوټۍ په څیر راغونډې شي او سره ونه لګول شي بې مده "و" ادا کیږي .

۳- کله چې د لاندینۍ شونډې ګیډه د پورته ثنایا غاښونو له څوکو سره ولګول شي د " ف" توری ادا کیږي .

(و)

(ف)

**څلورم: خيشوم(دپوزې آخره برخه)**

له خيشوم څخه غنه ادا کيږي( غنه هغه آوازته وايي چې د غرڅه له آواز سره مشابه وي يعنې کله چې غرڅه خپل بچي ته آواز کوي نو آواز يی له غنی سره مشابه وي) ، کله چې نون اوميم مشدد واقع شي او يا غنه لرونکی ادغام مينځته راشي ، غنه ادا کيږي.

**پنځم : جوف (د خولې داخلي خاليګاه )**

له دغه ځای څخه دری مد لرونکي توري ادا کيږي .

١- "و" کله چې ساکن وي او له هغه څخه مخکې حرف پيښ ولري لکه "المغضُوْب "

2- "ی" کله چې ساکنه وي او مخکې حرف يې زير ولري لکه " نستعِيْن "

3- "الف" کله چې ساکن وي او له هغي مخکې حرف زور ولري لکه " قَاْلَ" .

چې ښه مثال يې( نُوْحِيْهَا) دی.

## د مخارجو د لنډيز جدول

| شمیره | عام مخرج | د مخارجو شمیر | خاص مخرج | الحروف توري | مسلسل نمبر |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | الحلق (ستونی) | ۱ | اقص الحلق (د ستوني آخري برخه) | ء ، ها | ۱ |
| | | ۲ | وسط حلق (د ستوني مینځني برخه) | ع،ح | ۲ |
| | | ۳ | أدنی الحلق (د ستوني لومړۍ برخه ) | غ،خ | ۳ |
| ۲ | اللسان (ژبه) | ۱ | اقصی اللسان (کله چې د ژبې پای د نرم تالو سره ولګول شي ) . | ق | ۴ |
| | | ۲ | د «ق» د مخرج سره نږدې لږ د خولې بیرون طرف ته . | ک | ۵ |
| | | ۳ | وسط اللسان (کله چې د ژبې مینځنۍ حصه د مقابل تالو سره ولګول شي ) . | ج،ش،ی | ۶ |
| | | ۴ | حافة اللسان (کله چې د ژبي | ض | ۷ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | يوارخ له ښي يا چپ طرف پاس اضراس غاښونو د داخلي ديوال سره ولګول شي) . | | |
| | | ۵ | طرف اللسان(کله چې د ژبې څوکه د پاس د ثنايا غاښونود تالو سره ولګول شي ) . | ل | ۸ |
| | | ۶ | طرف اللسان (کله چې د ژبې څوکه د پاس ثنايا ،رباعياتو د تالوسره ولګول). | ن | ۹ |
| | | ۷ | طرف اللسان (کله چې د ژبې څوکه د پاس تالوسره د رباعياتو اوثناياوو غاښونو مينځ کښې ولګول شي). | ر | ۱۰ |
| | | ۸ | طرف اللسان (کله چې د ژبې نوک د پورته ثناياوو له بيخ سره ولګيږي). | د،ت،ط | ۱۱ |
| | | ۹ | طرف اللسان (کله چې د ژبې نوک د پورته ثناياوو له | ث،ذ ، ظ | ۱۲ |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | | | څوکې (سر) سره ولګيږي ). | | |
| | | ۱۰ | رأس اللسان (کله چې د ژبې څوکه د لاندنيو ثناياوود داخلي طرف سره ولګيږي). | س،ص، ز | ۱۳ |
| ۳ | الشفتان | ۱ | مابين الشفتين (کله چې پاسنۍ او لاندينۍ شونډې سره ولګيږي ) . | ب،م ،و | ۱۴ |
| | | ۲ | کله چې لاندې شونډه د پاس غاښونو سره ولګول شي . | ف | ۱۵ |
| ۴ | جوف | ۱ | الجوف (د خولې خاليګاه څخه راوځي ) | ا،و ،ي | ۱۶ |
| | الأنف (پزه) | | الخيشوم (د پوزې له بيخ څخه راوځي ) | غنه | ۱۷ |

# څلورم فصل

## د حروفو صفات

صفات د صفت جمع ده او صفت د حرف د ادا په وخت کې داسې کیفیت دی چې له بل حرف سره یې فرق وشي د حروفو د صفاتو یوه ګټه همدا ده چې د یو شان مخرج یا قریب المخرج حروفو فرق وشي .

د صفاتو په شمیر کې د علماؤ اختلاف دی چې ځینې علماء شمیر اوولس (۱۷) او د ځینې په نزد څلویښت او څلور څلویښت دي .دلته هغه قول چې شمیر یې اوولس دی تر مطالعې لاندې نیول شوی دي.

صفات په دؤ برخو ویشل شوي دي متضاد او غیر متضاد .

**متضاد صفات** :متضاد هغه صفات دي چې د هغه لپاره ضد وي او دا پنځه صفات دي چې له ضد سره یې لس صفات کیږی.

**غیرمتضاد صفات** : غیر متضاد هغه صفات دي چې د هغه لپاره ضد نه وي او دا اووه صفات دي .

**متضاد صفات** : متضاد صفات پنځه دي چې له ضد سره یې لس کیږي لکه په لاندې جدول کې :

| استعلاء | ضد | استفال |
|---|---|---|
| شدت | ضد | رخوت |
| جهر | ضد | همس (مهموسه) |
| اطباق | ضد | انفتاح |
| اذلاق | ضد | اصمات |

١- **استعلاء:** په لغت کې لوړوالي ته وايي او په علم تجويد کې د حرف د ادا کولو په وخت کې ژبه تالو ته پورته کيږي ،يعنې کوم حروف چې دا صفت لري اوچت او ډک ادا کيږي .

داسې چې د اداکولو په وخت کې د ژبې بيخ پورته تالو ته لوړيږي د لوړېدو له کبله دا تورې ډک تلفظ کيږي .

حروف يې اووه دي چې پدې جمله کې جمع شوي (خص ضغط قظ) .

٢- **استفال:** استفال د استعلاء ضد دی په لغت کې ټيټوالي ته وايي او په علم تجويد کې د حرف د ادا کولو په وخت کې د پاس تالو څخه د ژبې بيخ ټيټيږي، يعنې د ادا کولو په وخت کې د ژبې بيخ تالو ته نه لوړيږي له دې کبله دا توري نرم او نازک ادا کيږي.

د استعلاء د حروفو پرته د هيجاء نور ټول حروف د استفال صفت لري لکه :(ء ب ت ث ج ح د ذ ر ز س ش ع ف ك ل م ن هـ و ي ا) ،او کوم

٣- **شدت :** په لغت کې سختي يا قوت ته وايي او په علم تجويد کې د صوت يا غږ بندېدل دي د حرف د ادا کولو په وخت کې او کوم حروف چې دا صفت لري په سختی سره ادا کيږي .

يعنې د ادا کولو په وخت کې په مخرج کې آواز په سختۍ سره ودريږي او د آرامتيا په وخت کې آواز وربانديې بنديږي .

حروف يې اته دي چې په (أجد قط بکت) جمله کې جمع شوي دي .

٤- **رخوت :** د شدت ضد دی په لغت کې سستوالي يا نرمی ته وايي او په علم تجويد کې جريان د صوت دی د حرف د ادا کولو په وخت کې او کوم

حروف چې دا صفت لري په کمزورۍ او نرمۍ سره اداکیږي، یعنې د ادا کولو په وخت کې په مخرج کې آواز جریان پیدا کوي .
د شدت د حروفو پرته د هیجاء ټول حروف د رخوت صفت لري لکه :
:(ث ح خ ذ ز س ش ص ض ظ غ ف ه و ي ا) .
**۵- جهر:** په لغت کې څرګندوالي یا اعلان ته وایي او په علم تجوید کې د ساه بندېدل دي د حروفو د ادا کولو په وخت کې او ضد یې همس دی.
یعني د ادا کولو په وخت کې په مخرج کې آواز یا کاملاً بند شي او یا یوه برخه د هغه بنده شي.
حروف یې (عظم وزن قاري ذي غض جد طلب) جمله کې جمع شوي دي.
کله چې نوموړي حروف ساکن او یوه زور لرونکي همزه وربانديې داخله شي نو ساه یا کاملاً بندیږي او یا یې یوه برخه بندیږي نو که ساه کاملاً بنده شوه مونږ وایو چې پدې حرف کې د جهر صفت ډیر قوي دی او که یې یوه برخه بنده شوه نو وایو چې پدې حرف کې د جهر صفت متوسط دی او که له هغه نه هم لږ بنده شي نو وایو چې د جهر صفت ضعیف دی.
**۶- همس(مهموسه) :** په لغت کې پټوالی یا کرار ویلو ته وایي او په علم تجوید کې د ساه جریان دی د حرف د ادا کولو په وخت کې، یعنې د ادا کولو په وخت کې په مخرج کې ساه نه بندیږي بلکه جاري وي او په آواز کې یو ډول ښکته والی راځي چې ښه مثالونه یې لکه اَسلفتم ، اهدنا ، واشکرو لي او داسې نور.

حروف یې لس دی چې عبارت دی له (فحثه شخص سکت).

۷- **اذلاق :** په لغت کې تیزی ته وايي او په علم تجويد کې کوم حروف چې دا صفت لري د ژبې له ارخ او شونډو نه په تیزی او آسانۍ سره ادا کیږي .

حروف یې شپږ دی چې عبارت دی له (فر من لب ) .

۸- **اصمات (مصمته):** د اذلاق ضد دی په لغت کې چوپوالي ته وايي او په علم تجويد کې کوم حروف چې دا صفت لري د تلفظ په وخت کې ثقيل او سخت ادا کیږي .

حروف یې ۲۳ دی عبارت دی له **(جز غش ساخط صيد ثقة إذ وعظه يحضك).**

۹- **اطباق :** په لغت کې تماس او نښليدو ته وايي او په علم تجويد کې کوم حروف چې دا صفت لري د حروفو د ادا په وخت کې د ژبې مینځ د پورته تالو سره نښلي .

حروف یې څلور دي :(ص ض ط ظ) .

۱۰- **انفتاح (منفتحه):** د اطباق ضد دی په لغت کې خلاصوالي یا بیلوالي ته وايي او په علم تجويد کې د ژبې خلاصوالی دی له پاس تالو څخه د حرف د ادا کولو په وخت کې او کوم حروف چې دا صفت لري د حروفو د ادا په وخت کې ژبه له تالو نه جلا وي .

حروف یې ۲۵ دي **(من أخذ وجد سعة فزكا حق له شرب غيث).**

## غير متضاد صفتونه :

غير متضاد صفتونه اوه دي انحراف ،قلقله ،لين ،صفير،تكرير،تفشي او استطالت

١- **انحراف** : په لغت کې کوږوالي ته وايي او په اصطلاح کې د حرف ميلان دی د ژبې له نوک څخه دا صفت د "ل" او "را" په حروفو کې دی چې د ادا په وخت کې د خپل مخرج څخه کم کوږوالي پيدا کوي .

٢- **قلقله** : په لغت کې حرکت او خوځښت ته وايي .

د قلقلی د حروفو صفت دا دی چې د سکون په حالت کې د هغې د تلفظ پر مهال په مخرج کې خوځښت رامينځته کيږي د قلقلې حروف پنځه دي چې په (قطب جد) کې جمع شوي دي .

**د قلقلې اقسام**

قلقله د ادا کولو له مخکې درى قسمه ده :

قلقله کبرى :

کله چې د قلقلې حرف مشدد وي او په آخر د کلمې کې واقع شوى وي هلته لويه قلقله تر سره کيږي لکه دغه قول د الله سبحانه وتعالى : [يَسْأَلُونَكَ عَنِ الأَهِلَّةِ قُلْ هِيَ مَوَاقِيتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ] او [قَالُواْ الآنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ] .

قلقله وسطى :

کله چې د قلقلې حرف ساکن وي په آخر د کلمې کې واقع وي او وقف وربانديې شوى وي او مشدد نه وي نو متوسطه قلقله ادا کيږي ،لکه دا قول د الله تعالى : [قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ].

قلقله ضغرى :

كله چې د قلقله حرف ساكن وي په مينځ د كلمې كې راغلى وي كوچنۍ قلقله تر سره كيږي لكه دا قول د الله تعالى : [فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِندَ مَلِيكٍ مُّقْتَدِرٍ]

۳- **لين** : د لين معنې ده سهولت او نرمي او دا حروف د ادا په وخت له مخرج څخه په نرمۍ سره ادا كيږي .

حروف يې دوه دى (واو، يا ) چې خپله ساكن وي ماقبل يې مفتوح (زور) لرونكى تورى وي .

لكه :(خَوف، صَيف، قَريش... او داسى نور)

۴- **صفير**: د صفير معنى دا ده چې د دغو حروفو د تلفظ پر مهال د شپيلى د آواز په شان آواز غوږ ته رسيږي له همدې كبله هغه ته صفيريه حروف وايې چې له "ص ز س"حروفو څخه عبارت دي .

۵- **تكرير**: دا صفت يوازى په "ر" كې ليدل كيږي چې د ادا په حالت كې يو ډول لړزه پيدا كيږي ،يعنى د ادا په وخت ژبه رپيږي پداسې ډول چې "را" تكرار تلفظ نشي .

۶- **تفشي** : په لغت كې شيندلو ته وايې دغه صفت د" ش" د حرف دى چې ددې تورى د ادا كولو په وخت كې آواز په خوله كې خپريږي .

۷- **استطالت** : په لغت كې اوږدوالي ته وايي او دا صفت لرونكى تورى يواځې د "ض" حرف دى چې د ادا په وخت كې د مخرج له شروع تر پايه ټول اضراس غاښونه نيسي .

## د ځینومشابه حروفو ترمنځ فرق

**د «ذ» او «ز» ترمنځ فرق:**

د «ذ» مخرج: کله چې د ژبی نوک د پاسنیو ثنایاغاښونو له څوکی سره ولګیږي د "ذ" توری اداکیږي.

د «ز» مخرج: کله چې د ژبی څوکه دلاندنیو ثنایاغاښونو د بیخ سره ولګیږي د" ز" توری اداکیږي نو ویلای شو چې د «ذ» په ادا کې د ژبی څوکه بیرون خواته راوځي ولی د «ز» په تلفظ کې نه راوځي.

او «ز» حرف د سفیر صفت لري چې مخکې بیان شو د شپیلۍ په شان آواز لري.

**د «ث» او «س» ترمنځ فرق:**

د «ث» او «س» حروفو تر منځ همداسې فرق دی لکه د «ذ» او «ز» تر مینځ چې موجود ؤ ځکه «س» د «ز» له مخرج څخه ادا کیږي او د صفیر صفت لري پداسې حال کې چې «ث» د «ذ» له مخرج څخه ادا کیږي د همس صفت او رخوت په هغه کې واضح دی.

**د «ظ» او «ض» ترمنځ فرق:**

د «ظ» مخرج: هرکله چې د ژبی د نوک زیاته برخه د پاسنیو ثنایا غاښونو له څوکی سره ولګیږي د "ظ" حرف اداکیږي.

د «ض» مخرج: کله چې د ژبې یو اړخ د پاسنیو اضراس غاښونو سره ولګول شي د«ض» توری تلفظ کیږي البته له چپې خوا څخه یې ادا کول آسانه دي ،نو ځکه د ظا مخرج له ض نه لرې دی.

او بل دا چې د «ض» حرف د استطالت صفت لري چې بل په هيڅ کوم حرف کې دا صفت نشته.

» هغه حروف چې هميشه ډک يا مفخم تلفظ کيږي اومستعليه حروف ورته وايی اووه دي(خص , ضغط , قظ)

**د «س» او«ص» ترمنځ فرق:**

کله چې د ژبې ځوکه د لاندنيو ثناياوو د داخل طرف سره ولګول شي نو د "ز،س،ص" توري ادا کيږي خو دومره توپير شته چې د"ص" حرف د استعلاء د صفت د لرلو له کبله ډک ادا کيږي او د " ز " او"س" حروف تش يا باريک ادا کيږي.

# پنځم فصل

## د ساکن نون او تنوین احکام

ساکن نون هغه دی چې حرکت (زور،زیر او پیښ) ونه لري یعنی غړوندی واله "نْ" دی او تنوین دوه زورونه ،دوه زیرونه او دوه پیښونو (ـــًـــٍــٌــ) ته وایي .ساکن نون او تنوین څلور احکام لري چې عبارت دي له: ادغام ،اقلاب ،اخفاء او اظهار.

### ۱- ادغام

ادغام په لغت کې د یو څیز په بل څیز کې داخلولو ته ویل کیږي .

او دعلم تجوید په اصطلاح کې کله چې د ساکن نون یا تنوین څخه وروسته د "یرملون" (ی،ر،م،ل،و،ن ) د تورو څخه کوم یو توری راشي نو هلته ادغام کیږي او دا ډول ادغام دوه ډوله دی:

الف: غنه لرونکی .

ب: بې غنی ادغام.

**الف : غنه لرونکی ادغام:**

کله چې د ساکن نون یا تنوین څخه وروسته د یمنو (ی،م،ن،و ) له تورو څخه کوم توری راشي غنه لرونکی ادغام پکې کیږي .

**ب : بې غنی ادغام :**

کله چې  د ساکن نون یا تنوین څخه وروسته د لر (ل،ر) کوم یو توری راشي بې غنې ادغام پکې کیږي .

دغُنه لرونکي ادغام مثالونه :

«ي» : مَنْ يَهْدي _ آيَةً يُعْرِضُوا

«م» : مِنْ مالٍ _ قَرارٍمَكينٍ

«و» : مَنْ وُجِدَ _ يَوْمَئِذٍ وَاجِفَةٌ

«ن» : عَنْ نَفْسٍ _ الى شَىءٍ نُكُرٍ

د بې غُني ادغام مثالونه :

«ل» : اِنْ لَبِثْتُمْ _ مَتاعاًلَكُمْ

«ر» : مِنْ رَبِّكُمْ _ مَثَلاً رَجُلاً.

**استثناءات :**

١- د ادغام لپاره دا شرط دی چې مدغم به په یو کلمه کې او مدغم فیه به په بله کلمه کې وي مګر که چېرې په یوه کلمه کې وي هلته اظهار مطلق تر سره کیږي او په قرآنکریم کې څلور ځایونه داسې دي لکه :«الدنیا، صنوان، قنوان، بنیان ».

٢- کله چې په ساکن نون او میم وقف وشي نو اظهار مطلق واجب دی .

٣- ځینې ځایونه د نون ساکن او تنوین له قواعدو څخه مستثنی دي لکه : [یس * وَالْقُرْآنِ الْحَكِيمِ] ، [ن وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُونَ] .

د امام شاطبي په نزد د وصل په حالت د سین نون (یس) کې او همدارنګه دوهم آیت شریف کې حرف نون کې اظهار تر سره کیږي .

**په عمومي توګه د ادغام اقسام:**

د صرفیانو په اصطلاح کې که دوه همجنس توري په یوه کلمه کې په پر له پسې توګه راشي په داسې حال کې چې لومړی یې ساکن او دوهم متحرک

وي نـو ادغـام مينـځ تـه راځي لـومړى تـورى پـه دوهـم کې مـدغم کيږي او دا ډول ادغام په درى ډوله دى :

**۱- د جنسينو ادغام :**

کـه دوه تـوري لـه يـوجنس (يـو مخـرج ) څخـه پـه يـوه کلمـه کې پـه پرلـه پسې توګه راشي چې اول يې ساکن او دوهم يې متحرک وي نو ساکن حرف پـه متحرک کې مدغم کيږي چې دېته د جنسينو ادغـام ويل کيږي لکه : قَدتَّبَيَّنَ - اِرْكَبْ مَّعَنَا - يَلْهَثْ ذَّلِكَ - وَدَّت طَّآئِفَةٌ ... او داسې نور .

په پورته مثالونو کې د (دال ، تاء ) ، (باء ، ميم ) ، (ثاء ، ذال ) او (تاء ، طاء ) حـروف لـه يـو مخـرج څخـه دي چې يـو پـه بـل کې مدغم شـوي او د ادغـام نښه يې شد دى .

**۲- د مثلينو ادغام :**

کـه دوه يوشـان تـوري پـه يـوه کلمـه کې پـه پرلـه پسې ډول راشي چې اول يې ساکن او دوهم يې متحـرک وي نـو سـاکن حـرف پـه متحـرک کې مدغم کيږي چې ديته د مثلينو ادغام وايي : لکه :

فَمَا رَبِحَت تِّجَارَتُهُمْ - وَقَد دَّخَلُواْ - وَذَا النُّونِ إِذ ذَّهَبَ مُغَاضِباً

**۳- د متقاربينو ادغام :**

کـه دوه داسې تـوري پـه يـوه کلمـه کښې پرلـه پسې راشي چې مخرجونـه يې سـره نـژدې وي پداسې ډول چې اول يې سـاکن او دوهـم يې متحـرک وي نـو سـاکن حـرف پـه متحـرک کې مدغم کيږي چې ديتـه د متقـاربينو ادغـام ويل کيږي لکه.

ساكن (قاف) په (كاف) کې چې مخرجونه يې سره لنډ دي لكه :
أَلَمْ نَخْلُقكُّم .
ساكن (لام) په (راء) کې : [وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْما]
ساكن (واو) په (نون) کې لكه : [وَلاَ يَجِدْ لَهُ مِن دُونِ اللّهِ وَلِيّاً وَلاَ نَصِيراً]
ساكن (نون) په (راء ) کې لكه : [أُوْلَئِكَ عَلَى هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ]
لاندې حالات ورڅخه مستثنی دي ځکه چې دلته سکته ادا كيږي :
[كَلَّا بَلْ ۜ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ] (سوره: المتففين ) .
[وَقِيلَ مَنْ ۜ رَاقٍ] (سوره : القيامة)
قاعده : د هغه ادغام چې لومړی توری يې ساكن او دوهم متحرک وي حكم واجب دی .
لكه فاضرب بعصاك الحجر
قاعده : كه د متماثلينو په ادغام کې لومړی او دوهم توری دواړه متحرک وي نو هلته ادغام كول جايز دي لكه:« لاتأمنا» چې په اصل کې «لاتأمننا» ؤ د عاصم رحمه الله په نزد جايز ادغام په ټول قرآن کی همدا يو ځای د لاتأمنا په كلمه کې دی .
او كه چېرته لومړی توری متحرک او دوهم ساكن وي هلته ادغام كول منع دي لكه يغضضن دا ځكه چې لومړی توری قوی متحرک دی او دوهم توری چې ساكن دی ضغيف دی چې د ادغام تحمل نلري .
د ادغام په وجه د ادغام دوهم توری ځنې وخت په مكمل ډول له مينځه ځي او د ځينو آواز پاتې كيږي چه دوه قسمه دی.

**كامل ادغام :**

هغه ادغـام دى چې كلـه دوه تـوري چې لـومړى سـاكن او دوهـم متحـرک وي مدغم شي تر ادغام وروسته د لومړي توري د تلفظ كولو هيڅ اثر پاتى نه شي لكه:

أُجِيبَت دَّعْوَتُكُمَا -مِّن رَّبِّهِمْ

ليدل كيږي چې د (تاء) لفظاً او صفتاً نه تلفظ كيږي

يا لكه:

أُوْلَئِكَ عَلَى هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ

دا ډول ادغام په قرآنكريم كې په مشدد ډول ښودل شوى وي .

**ناقص ادغام:**

د دوو تـورو داسې ادغـام چې لـومړى سـاكن او دوهـم متحـرک وي تـر ادغـام وروسـته د لـومړي تـوري ذاتـاً څـه اثـر پاتې ولې صـفت يې بـاقي وي ،يـا پـه بل عبـارت كلـه چې اول حـرف د يـو څـو صـفاتو سـره پـه دوهـم حـرف كې مـدغم شي ديته ناقص ادغام وايي.

مثال:

وَمَا لَهُم مِّنَ اللّهِ مِن وَاقٍ

مَن يَقُولُ

ليدل كيږي چې نون په (واو) او (ياء) مدغم شـوى دى مګر د غنې صفت يې پر ځاى پاتې دى .

چې داسې تلفظ كيږي:

مِـ ن ـوَاق

مـ ن يـقُول

### اقلاب

اقلاب لغتاً يو څيز په بل څيز بدلولو ته وايي او د علم تجويد په اصطلاح کې کله چې د ساکن نون او يا تنوين څخه وروسته د "ب" توری په کومه کلمه کې راشي نو تنوين يا ساکن نون په واړه ميم بدليږي او غنه پکې ضروري وي .

مثال: مِنْ بَعْدِ - سَمِيعٌ م بَصِيرٌ

### اظهار

اظهار په لغت کې څرګندولو ته وايي ،او د علم تجويد په اصطلاح کې د دوه تورو جلا کول دي ،داسې چې د ساکن نون او تنوين څخه وروسته د حلقی حروفو (ء،ه ،ع،ح، غ ،خ) څخه يو توری راشي ،ساکن نون يا تنوين اظهاريږي يعنی ښکاره او له وروستي توري څخه جلا تلفظ کيږي نون په طبعی شکل له خپل مخرج څخه ادا کيږي،ځکه چې نون د خولې له ابتدا څخه را وځي ،او حلقي حروف په حلق کې ادا کيږي چې فاصله يې يو تر بله ډيره ده .

مثالونه :

| | | | |
|---|---|---|---|
| ء: | يَنْأَوْنَ | مِنْ اَمْرِهِمْ | كُلٌّ آمَنَ |
| ه : | مِنْهُمْ | اِنْ هُوَ | فَرِيقاً هَدي |
| ع : | اَنْعَمْتَ | مَنْ عَمِلَ | سَمِيعٌ عَلِيمٌ |

ح : تَنْجِتُونَ فَمَنْ حَجَّ حَكِيمٌ حَمِيدٌ

غ : فَسَيُنْغِضُونَ مِنْ غِلٍّ قَوْلاً غَيْرَ

خ : اَلْمُنْخَنِقَةُ مِنْ خَيْرٍ حَكِيمٌ خَبِيرٌ

**اخفاء**

اخفاء په لغت کې پټولو ته وايي او د علم تجويد په اصطلاح کې کله چې د اظهار،ادغام او اقلاب له حروفو څخه پرته د هجاء د نورو پنځلسو (ت،ث،ج،د،ذ،ز،س،ش،ص،ض،ط،ظ،ف،ق،ک) تورو څخه يو توری د ساکن نون يا تنوين څخه وروسته راشي نو دغُنې سره اخفاء پکې کيږي يعنی د ساکن نون يا تنوين د ادا کولو مخرج د اخفاء د حرف مخرج ته ورل کيږي او هلته ادا کيږي .

يا په بل عبارت کله چې د اخفاء توري له ساکن نون او تنوين څخه وروسته راشي نو ساکن نون يا تنوين په متوسط ډول د اظهار او ادغام تر منځ ادا کيږي .

**د ساکن نون او تنوين د احکامو لنډيز**

<table>
<tr><td colspan="4">ادغام<br>د ساکن توري داخليدل په محترک توري کې چې د يو مشدد توري په توګه لوستل کيږي .<br>دوه قسمه دی : ۱- غنه لرونکی ۲- پرته له غني</td></tr>
<tr><td rowspan="2">حروف</td><td colspan="3">مثالونه</td></tr>
<tr><td>ساکن نون</td><td>تنوين</td><td></td></tr>
</table>

| حرف | ساکن نون | تنوین | |
|---|---|---|---|
| ي | مَنْ يقول | و فرقٌ يجعلون | غنه لرونکی ادغام |
| ن | مَنْ نعمة | يومئذٍ ناعمة | |
| م | وانْ مـــن شيء | عذابٌ مقيم | |
| و | مَنْ ولي | يومئذٍ واهية | |
| ل | مَنْ لدنا | فسلامٌ لک | بې غنې ادغام |
| ر | مَنْ ربهم | غفورٌ رحيم | |

**اقلاب**

د ساکن نون او تنوین بدلول په میم باندې سره له غنې او حرف باء

| حروف | مثالونه | |
|---|---|---|
| | ساکن نون | تنوین |
| ب | مَنْ بعد | سَمِيعٌ بَصِيرٌ |

نون او تنوین ځکه په میم بدلیږي چې «م» مخرج د «باء» د مخرج سره مشترک دی او همدارنګه د «م» توری د «نون» سره په غنه کې مشرک مخرک لري .

**اظهار**

د غنې ښخه پرته د اظهار د تورو او نون حرف ښرګند او

| ښکاره لوستل | | |
|---|---|---|
| حروف | مثالونه | |
| | ساکن نون | تنوین |
| ء | ینأون | کلٌّ آمن |
| ه | منهم | جرفٍ هار |
| ع | منْ عمل | حقیقٌ علی |
| ح | منْ حاد | علیمٌ حکیم |
| غ | منْ غل | قولاً غیر |
| خ | المنْخنقة | یومئذٍ خاشعة |

| **اخفاء**<br>د ادغام او اظهار تر مینځ حالت دی د تشدید څخه پرته غنه. | | |
|---|---|---|
| حروف | مثالونه | |
| | ساکن نون | تنوین |
| ص | ینْصرکم | ریحاً صرصراً |
| ذ | منْذر | سراعاً ذلک |
| ث | منْ ثمرة | جمیعاً ثم |
| ک | منْ کل | عاداً کفروا |
| ج | منْ غل | شیئاً جنات |

| ش | المنْخنقة | عليمٌ شرع |
|---|---|---|
| ق | ينْقلبون | سميعٌ قريب |
| س | منْ سبيل | بشراً سويا |
| د | انْدادا | قنوانٌ دانية |
| ط | ينْطقون | صعيداً طيبا |
| ز | فانْ زللتم | يومئذٍ زرقا |
| ف | وانْ فاتكم | عمىً فهم |
| ت | منْتهون | جناتٍ تجري |
| ض | منْ ضل | مسفرةٌ ضاحكة |
| ظ | منْ ظهير | ظلاً ظليلا |

## د ساكن ميم احكام

ساكن ميم درى احكام لري ادغام ،اخفاء او اظهار

**١ -ادغام :**

ساكن ميم فقط په ميم کې ادغاميږي .

مْ + م =مّ

کله چې د ساکن ميم نه وروسته بل متحرک ميم راشي نو ميم په ميم کې مدغم کيږي او د يوه الف يا دوو حرکتونو په اندازه غنه پکې کيږي . لکه : (أَمْ مَّنْ) (وَمِنْهُمْ مَّنْ) (كَمْ مِّنْ) (لَهُمْ مَغْفِرَةٌ) .

**۲- اخفا :**

کله چې له ساکن میم نه وروسته د (ب) حرف راشي له غنی سره اخفا کیږي چې دیته شفوي اخفا هم ویل کیږي یعنی شونډې به دیوه ویښته په اندازه فاصله لري او مکملې به نه سره لګیږي .

احکام تجوید لیکي چې که د میم نه وروسته د (ب) حرف راشي اخفا او اظهار دواړه روا دي ولی اخفاء کول غوره دي .

مثال : (هُمْ بَارِزُونَ) (كَلْبُهُمْ بَاسِطٌ) (إِنَّ رَبَّهُمْ بِهِمْ).

**۳- اظهار:**

د ادغام او اخفا حروفو (م،ب) پرته نور شپږویشت حروف که له ساکن میم وروسته راشي اظهار کیږي . یعنی ساکن میم له غنی پرته ښکاره او له خپل مخرج څخه ادا کیږي .

لکه : أَنَّ لَهُمْ جَنَّتٍ - أَمْ حَسِبْتُمْ اَن تدخل – أَلْحَمْدُ للهِ ، لهم فيها

خو د نورو حروفو په پرتله په (و، ف ) تورو کې د مخرج د اختلاف په وجه اشد اظهار کیږي لکه : په "و" کې امْوَالِ او په "ف" کی كَيِدَهُمْ فى تَضْلِيْلٍ.

د ساکن میم د احکامو لنډیز

<table>
<tr><td colspan="2">ادغام<br>کله چې د ساکن میم وروسته متحرک میم راشي ادغام صورت نیسي چې د متماثلین ادغام بلل کیږي .</td></tr>
<tr><td>حرف</td><td>مثال</td></tr>
<tr><td>م</td><td>و منهمْ من – كمْ من – أمْ من</td></tr>
<tr><td colspan="2">دې ادغام ته متماثلین ادغام وایي ځکه دواړه توري یو شان د یو مخرج څخه دي او همدارنګه ادغام صغیر هم بلل کیږي ځکه چې اول یې ساکن او دوهم یې متحرک دی.</td></tr>
<tr><td colspan="2">اخفاء<br>کله چې د ساکن میم وروسته د باء حرف راشي اخفاء مینځته راځي چې یوازې په دوو کلمو کې مینځته راځي .</td></tr>
<tr><td>حرف</td><td>مثال</td></tr>
<tr><td>ب</td><td>همْ بارزون – كلبهمْ باسط</td></tr>
<tr><td colspan="2">اظهار<br>کله چې د ساکن میم وروسته د «باء او میم» حروفو پرته د هیجا نور حروف راشي هلته اظهار کیږي ، یعنې د غنې پرته څرګند لوستل کیږي</td></tr>
<tr><td colspan="2">مثالونه</td></tr>
</table>

| أمْ أمنتم – يمْترون – أن لهمْ جنات – أمْ خلقوا |
|---|

## مشدد نون او میم

| حروف | مثال | | |
|---|---|---|---|
| | په حروفو کې | په افغالو کې | په اسماء کې |
| ن | انَّ | تظنُّون | منَّا |
| م | ثمَّ | دمَّرناهم | همَّاز |
| حکم : د دوو حرکتونو په اندازه غنه کول . | | | |

**غُنه :** غُنه هغه آواز دی چې له خیشوم (د پوزې له وروستۍ برخې ) څخه راوځي او د یوه الف یا دوو حرکتونو په اندازه کش کول کیږي .

یو حرکت دومره وي لکه خلاصه ګوته چې بنده شي یا تړل شوي ګوته چې خلاصه کړل شي .

غنه په میم مشدد ، میم مدغم او میم اخفاء ، نون مشدد ، نون مدغم نون اخفاء او تنوین کې تر سره کیږي

**غنه لره پنځه مراتب دي :**

۱- المشدد ( شد لرونکي میم او نون کې کامله غنه تر سره کیږي) .

۲- المدغم ( د ادغام په صورت کې کامله غنه تر سره کیږي) .

۳- المخفي ( د اخفاء نون او تنوین او اخفاء شفوي او اقلاب په صورت کې کامله غنه د دوو حرکتونه په اندازه تر سره کیږي) .

۴- الساکن المظهر (کله چې نون ساکن وروسته حلقي حروف وي په نون کې ناقصه غنه تر سره کیږي او د شفوي اظهار په صورت کې په میم کې ناقصه غنه ادا کیږي ).

۵- المتحرک ( په نون او میم متحرک کې ناقصه غنه تر سره کیږي ) .

# شپږم فصل

## د مد احکام

مد په لغت کې کش کولو ته وايي او د تجويد په اصطلاح کې د مد د تورو صوت ته له طبعی اندازې زيات کش کولو ته مد وايي .

د مد توری دری دي (الف ،واو، ياء ) يعنی چې کله "الف" ساکن ماقبل حرف يې فتحه يا زور ولري لکه :قَال .او چې کله "واو" ساکن ماقبل يا مخکينی حرف يې ضمه يا پيښ ولري لکه :يقُول

او چې کله "يا" ساکنه ما قبل حرف يې کسره يا زير ولري لکه : قِيْل

هر کله چې له دغو دريو حروفو وروسته همزه يا سکون راشي د مد توري له طبعي اندازې زيات کش کول کيږي .

يعنی د مد سبب دوه ځيزونه دی همزه – سکون .

قصر (لنډول ) قصر د مد ضد دی چې پدې حالت کې د مد حروف په طبعي ډول کش کول کيږي او زيادت نه پکې کيږي يعنې د يوه الف يا دوو حرکتونو په اندازه کش کول کيږي دا ځکه چې د مد له حروفو وروسته د مد سبب (همزه اويا سکون) نه وي راغلي .

مد عموماً په دوه ډوله دی.

لومړی – اصلي (طبيعي) مد

دوهم- فرعي يا طويل مد

**لومړی- اصلي يا طبيعي مد**

طبيعي مد هغه مد دی چې له مدي حروفو (الف، واو،ياء) وروسته همزه يا سكون نه وي راغلی چې د قصير يا اصلی مد په نامه هم يادېږي چې د يو الف يا دوه حركتونو په اندازه كش كول كيږي .

**دوهم- فرعي مد**

فرعي مد هغه مد دی چې له مدي حروفو وروسته سبب ( همزه او سكون) راغلی وي ،او دغه مد د طويل مد په نامه هم يادېږي.

**د اصلي (طبيعي ) مد ډولونه :**

طبعي يا اصلي مد په پنځه قسمه دی چې په لاندې ډول بيانيږي :

**۱- مد بدل:**

هغه مد دی چې په هغه كې دوې همزې متصل يو په بل پسې راغلې وي لومړۍ متحركه او دوهمه يې ساكنه وي، دوهمه ساكنه همزه د مد په حرف يعنی "الف" او يا "ی" بدله شوي وي لكه: (آدَمَ) چې دا په حقيقت كی (اَأْدَمَ) وو چې پدې كې دوهمه همزه د مد په حرف يعنې الف باندې بدله شوې او (آدم) ترېنه جوړ شوی، يا لكه: (اِيْمَاناً) چې دا په حقيقت كې (اِأْمَاَناً) وو چې پدې كې هم دوهمه همزه د مد په حرف يعنې "ی" باندې بدله شوې او(ايمانا) ترېنه جوړ شوی.

د مد بدل كش كول د دوو حركتونو په اندازه جايز دي چې ځينې علماء كرام يې د كش كولو اندازه تر دوو حركتونو زياته كڼې او په مد فرعي كې يې شماري (الميسر المفيد في علم التجويد ص ۷۷ ) .

## ٢- مد عوض:

كله چې په مفتوح يا زور لرونکي تنوين باندې وقف وشي نو زور لرونکی تنوين په الف باندی عوض کيږي چې په دې صورت کې د دوو حرکتونو په اندازه مد کول واجب دي لکه دغه قول د الله سبحانه وتعالی :[وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُونَ فِي دِينِ اللَّهِ أَفْوَاجًا] .

په « أَفْوَاجًا » چې کله وقف وشي « أَفْوَاجَا » لوستل کيږي او د دوو حرکتونو په اندازه کش کول کيږي .

## ٣- اصلي حرفي مد:

دا هغه مد دی چې د مقطعاتو په ځينو حروفو کې راغلی وي ، او دوه حرکته مد پکې کيږي لکه (حا، يا، طا، ها ، را) چې دا حروف د (حی طهر) په کلمه کې جمع شوی دي.

## ۴- مد صلهء صغرای یا صلهء قصير:

کله چې د "ها" ضمير او "ها" اسم اشاره په يوه کلمه کې راغلی وي او له هغه څخه مخکې يا وروسته حرف متحرک وي نو د دوو حرکتونو په اندازه مد پکې ادا کيږي .

چې د پيښ په حالت کې د (واو ) په شان لوستل کيږي او د زير په حالت کې د (ی) په شان لوستل کيږي .

لکه دا قول د الله سبحانه وتعالی : وَامْرَأَتُهُ و حَمَّالَةَ الْحَطَبِ (المسد) .

او فرمايي : فَوَسَطْنَ بِهِ ی جَمْعًا (العاديات ) .

**٥- مد تمكين:**

کله چې دوې "يا" ګانې يا دوه "واو" وونه په يوه کلمه کې راشي په داسې شکل چې اوله "ى" يا اول "واو" ساکن او دوهم متحرک وي نو په دی حالت کې هم دوه حرکته مد ادا کيږي چې ديته مد تمکين وايي او درى حالتونه لري :

الف : کله چې ساکن واو وي ماقبل حرف يې پيښ ولري او د ماقبل مخکې حرف زور ولري لکه : ءأمنوا وعملوا الصالحات }

يا کله چې د ساکن ياء څخه مخکې متحرکه ياء راشي لکه : { في يومين }.

ب ) : کله چې مدي واو د پيښ لرونکي واو وروسته راشى لکه : { يلوون }.

يا د زير لرونکي ياء څخه وروسته مدي ياء راشى لکه : {يحيي ويميت}.

ج ) : کله چې د زير لرونکي مشددې ياء وروسته مدي ياء راشي لکه : { حُيِّيْتم ، النبيِّين ، الأميِّين }

په پورته درى واړو صورتونو کې تمکين مد ادا کيږي د دوو حرکتونو په اندازه کش کول کيږي .

## د فرعي مد ډولونه :

فرعي یا غیر طبعي مد هغه مد ته وایي چې د مد تر حروفو وروسته سبب راغلی وي چې سبب یې همزه یا سکون دی له دوه حرکتونوڅخه زیات بیا تر شپږو حرکتونو پورې کش کول کیږي او فرعي مد په لاندې ډولو ویشل شوی دی :

- هغه مد چې سبب یې همزه وي په دوه ډوله دی:

۱- مد متصل واجب

۲- مد منفصل جایز

- هغه مد چې سبب یې سکون وي ، دا هم په دوه ډوله دی:

۱- اصلي سکون

۲- عارضي سکون

د اصلي سکون له کبله مد په څلور قسمه دی :

مثقل کلمي ، مخفف کلمي ، مثقل حرفي او مخفف حرفي .

د عارضي سکون له کبله مد په دوه ډوله دی :

مد عارض لسکون ، مد لین لازم

فرعي یا غیرطبعي مد په لاندی ډول په تفصیل سره ذکرکیږي.

### ۱- متصل مد :

کله چې د مد له تورو وروسته همزه راشي او د مد حرف او همزه دواړه په یوه کلمه کې وي ، پدغه صورت کې د مد حرف د شپږو حرکتونو په

اندازه کش کول کیږي ،د حفص په نزد څلور یا پنځو حرکتو په اندازه کش کول کیږي اوحکم یې واجب دی لکه :

[شَآءَ – جَآء – أَلْمَلآئِكة ] .

وینو چې په «شَآءَ » کې د الف چې د مد حرف دی وروسته همزه راغلي ده .

## ۲- منفصل مد :

کله چې د مد له حروفو وروسته همزه راشي او د مد حرف او همزه دواړه په یوه کلمه کې نه وي بلکي د مد حرف په یوه کلمه کې او همزه په بله کلمه کې راغلي وي منفصل (جلا) مد بلل کیږي ، چې د څلورو حرکتو نه تر پنځو حرکتونو پورې کش کول کیږي او حکم یی جایز دی لکه:

[مَآ أُنْزِل - إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْکَ ]

## ۳- مثقل کلمي مد:

کله چې د مد حرف او سبب یې (سکون) دواړه په یوه کلمه کې راغلي وي او د مد سبب شد لرونکي توري وي یا د مد د حرف وروسته مشدد حرف راغلی وي د کلمي مثقل مد په نامه یادیږي لکه:

[ وَلاَ الضَّالِّينَ - الْحَاقَّةُ] ..

په « الضَّالِّينَ » کې د الف چې د مد توری وروسته مشدد حرف چې لام دی راغلی دی .

ددي مد حکم لازم دی یعنې د شپږو حرکتو پورې کش کول کیږي.

**۴- مخفف کلمي مد :**

کله چې د مد د حرف وروسته د مد سبب د سکون لازم په توګه په يوه کلمه کې راغلي وي او د مد سبب مشدد نه وي د کلمي مخفف په نوم ياديږي .

سکون لازم دا چې د وقف او وصل دواړو حالاتو کې سکون اصلي وي تغير نه کوي دا مد د قرآنکريم يوازې په يوه کلمه کې راغلی لکه :[ ءالئن] .

ددی مد حکم هم لازم دی د شپږو حرکتونو په اندازه کش کول کيږي.

**۵- مثقل حرفی مد :**

کله چې د مد حرف او سبب يې(سکون) په يو د مقطعاتو حروفو کې راشي او سبب يې شد لرونکي توري وي د مثقل حرفي مد په نامه ياديږي. لکه :

الم - طسم

د ياء څخه وروسته راغلی نون (السين ) په ميم مدغم شوی او يا باندې مد کول مثقل (درووند) مد ګرځيدلی دی .

پدې حروفو کې څکه مد وي چې (لام ) يا (سين ) کې د مد حرف ساکن ماقبل يې له خپله جنسه يعنې "الف" ساکن ماقبل يی زور او"ی" ساکنه ماقبل يې زير او وروسته يې مشدد حرف راغلی دی چې ددې مد حکم هم لازم دی يعنی (مثقل حرفي لازمي مد هم ورته وايي) او د پنځو څخه ترشپږو حرکتو پورې کش کول کيږي.

**۶- مخفف حرفي مد :**

کله چې د مد له حرف څخه وروسته په یو د مقطعاتو حروفو کې سبب (سکون) راغلی وي او مشدد نه وي د مخفف حرفي مد په نامه یادیږي.

لکه :

[ ق وَالْقُرْآنِ الْمَجِيدِ - ص وَالْقُرْآنِ ذِي الذِّكْرِ- ن والقلم ومایسطرون] .

پدې حروفو کې ځکه مد وي چې (قاف ) یا (نون ) یا( صاد) کې د مد حرف ساکن ماقبل یې له خپله جنسه یعنې "الف" ساکن ماقبل یې زور او"و" ساکن ماقبل یې پیښ او وروسته یې سکون راغلی دی .

ددې مد حکم هم لازم دی تر شپږو حرکتونو پورې کش کول کیږي.

**۷- مد عارض لسکون :**

کله چې د مد له حروفوڅخه وروسته سکون راشي او دغه سکون اصلي سکون نه وي بلکه د وقف له کبله یو حرف ساکن شوی وي نو دیته عارضي سکون وایي او مد ته یې عارض لسکون مد وایي، چې دا هم د دوه حرکتونو، څلورو حرکتونو او شپږو حرکتونو په اندازه کش کول کیږي او ددې مد حکم هم جایز دی یعنی پدی کی طول ، توسط او قصر جواز لري

لکه [رب العالمينْ ، الکافرونْ، ان الله شدیدالعذابْ] .

**۸- د لین لازم مد :**

لین نرمۍ ته وایي چې دا صفت په دوو حروفو کې دی کله چې "واو" ساکن وي ماقبل یې زور لرونکی توری وي او یا "ي" ساکنه ماقبل یې زور لرونکی توری وي چې دغه "و" او "ی" ته د لین حروف وایې یعنې کله چې "و" او یا

"ی" ساکن ماقبل یې زور لرونکی توری وي نو پدې حالت کې مد کیږي که ددی مـد سبب(سـکون) اصـلی وي د( لـین لازم ) پـه نامـه یـادیږي لکـه: (کهیعص) چې د عـین پـه حـرف کی لـین لازم دی اوحکـم یې لازم دی یعنی طول یی د پنځوخځه ترشپږو حرکتـو او توسـط یی تر دونیموحرکتو پورې کش کول کیدای شي ، او که ددی مد سبب( سکون) عارضي یعنې د وقف له کبله وي د لین عارض لسکون په نامه یادیږي لکه : من خَوْفٍ - قریش -البیت چې ددی مد حکم جایز دی یعنې طول – توسط او قصر جواز لري.

مد
اصلي مد
فرعي مد
بدل مد
عوض مد
صله صغرا مد
تمکین مد
حرفي طبعي مد
سبب همزه
سبب سکون
متصل واجب
منفصل جایز
عارضي سکون
اصلي سکون
مدعارض لسکون
مدلین لازم
حرفي
کلمي
مثقل حرفي
مخفف حرفي
مثقل کلمي
مخفف کلمي

# اووم فصل

## تفخيم او ترقيق

## د «را» د حرف احکام :

١- د "را" تورى كه چيرى زور يا پيښ ولري يا د "را" حرف خپله ساكن مخكې حرف يې زور يا پيښ ولري نو پدې صورت كى تفخيم كيږي يعنى "را" ډكه تلفظ كيږي .

مثالونه : رَبُّكَ – رُزِقُواْ – مَّرْفُوعَةٌ – عُرْضة

٢- كه د "را" حرف زير ولري يا "را" ساكنه او مخكې حرف يې زير ولري نو پدې صورت كې ترقيق كيږي "را" باريكه تلفظ كيږي .

رِحْلَةَ – فِرْعَوْنَ

٣- كله چې "را" ساكنه او ماقبل حرف يى زير ولري او وروسته يې مستعليه حروف په يوه كلمه كې راشي نو پدې حالت كى "را" ډكه تلفظ كيږي يعنې تفخيم پكې كيږي لكه:

[إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ ،قِرْطَاسٍ ]

او كه چېرته "را" په يوه كلمه او حرف مستعليه په بله كلمه كې راغلى وي پدې حالت كې "را" باريكه تلفظ كيږي يعنې ترقيق پكې كيږي لكه: فاصبرصبرا جميلا .

۴- كله چې "را"ساكنه ماقبل يې همزه وصل راغلى وي يا مخكى له "را" نه عارضي كسره راغلى وي پدې حالت كې هم "را" ډكه تلفظ كيږي يعنى تفخيم پكى كيږي لكه:

[أَمِ ارْتَابُوا- ارْجِعِي].

په پورته مثالونو کې مخکې له "را" څخه عارضي کسره یا وصلی همزه راغلی ده.

۵- کله چې "را" ساکنه او ماقبل حرف یې هم ساکن وي نو د هغه ماقبل ماقبل ته ترجیح ورکول کیږي که د ماقبل ماقبل یې زور یا پیښ وي ډکه او که زیر وي باریکه تلفظ کیږي لکه: [وَالْفَجْرِ * وَلَيَالٍ عَشْرٍ].

۶- کله چې "را" ساکنه او ماقبل یې "ی" ساکنه راغلی وي نو پدې حالت کې هم "را" باریکه تلفظ کیږي یعنی ترقیق پکی کیږي لکه: خيْر، سيْر.

**د حرف لام احکام :**

۱- په لفظ جلاله (الله جل جلاله ) کې که د لام نه مخکې حرف زور یا پیښ ولري تفخیم کیږي یعنی"لام" ډک تلفظ کیږي لکه : هُوَ اللَّهُ - نَارُ اللَّهِ الْمُوقَدَةُ

همدارنګه که د"لام" نه مخکې حرف ساکن وي له هغه مخکې حرف زور یا پیښ ولري پدې صورت کې هم د "لام" توری ډک ادا کیږي لکه : عَلَى اللَّهِ - واعْبُدُوا اللَّهَ.

۲- که د "لام" نه مخکې حرف زیر ولري یا د "لام" نه مخکې حرف ساکن وي او د هغه نه مخکې حرف زیر ولري ترقیق کیږي یعني "لام" باریک ادا کیږي لکه : [قُلِ اللَّهُمّ - وَيُنَجِّي اللَّهُ ]

مګر لام (ال) بغیر له لفظ جلاله نه په نوروکلماتو کې په دوه ډوله دی :

۱- ( شمسي حروف) "ال" شمسي

۲- ( قمري حروف)   "ال" قمري

شمسي حروف هغه حروف دي چې كله (الف لام ) پرى داخل شي نو ( لام) نه لوستل كيږي بلكې په وروستي حرف كې مدغم كيږي .

لكه :ألنَّاسُ، أَلطَّآمَّة – الشمس- التواب... اوداسى نور.

د شمسي "ال" د پيژندنې علامه دا ده چې د لام نه وروسته حرف شد لرونكې وي .

قمري حروف هغه حروف دي چې كله ( الف لام) پرى داخل شي نو (لام) لوستل كيږي يعنې نه مدغميږى لكه : أَلْقَمَرُ، أَلْعَلِيمُ –الخبير- القيوم ... اوداسى نور.

❖ ددې كتاب بيا كتونكي حافظ القرآن ښاغلی قاري صاحب وايي : زمونږ ګران استاد مرحوم قاضي صاحب محمدكريم حيدري په لاندې شعر كې په ډير ښه ډول بيان كړي دي.

دحلق شونډو ټول حروفونه

د لسان جيم ، يا، قافونه

قمري ګڼه جانانه

نور شمسي دي پر ماګرانه

القمر الشمس ته ګوره

نور قياس كړه زما وروره

لكه پټ ستوري په لمر كې

وي خو ښكاري په قمر كې

القمر کۍ لام ښکاره دی

په الشمس کی پټ پنه دی

او په بل ځای کې يې په لنډ ډول داسې بيان کړي دي.

شين جمع غاښونه شمسي ---- نور واړه قمري

يعنې شين له هغو حروفو سره يوځاى چې په غاښونو کي اداکيږِ شمسي حروف دي او پاته نور قمري حروف دي چې دواړه ( ۱۴ – ۱۴ ) حروف کيږي.

يعنې شمسي حروف دا دی : :( ت – ث – د – ذ - ر- ز–س –ش –ص –ض –ط –ظ –ل- ن ).

او پاپې نور قمري حروف دي .

**د همزه وصل احکام :**

تعريف : همزه وصل هغه زياته شوې همزه ده چې د ساکن حرف د لوستلو لپاره کارول کيږي ، په اول د کلمې کې لوستل کيږي او په مينځ د کلمې کې نه لوستل کيږي .

د قرآنکريم ځينې کلمات داسې وي چې لومړی حرف يې ممکن حرکت (زور،زير،پيښ ) لرونکی وي د دا ډول کلماتو د تلفظ په پيل کولو کې څه مشکل نه وي .

مګر په داسې صورت کې چه د کلمې لومړی حرف ساکن وي نو د هغه د تلفظ شروع غير ممکنه وي نو بايد د هغه د ابتداء لپاره د وصل همزه

وکاروو تر څو وتوانيږو د کلمې لومړی حرف تلفظ کړای شو په همدې وجه د (و صل همزې ) په نوم یادیږي .

یعنی د وصل د همزې په وسیله د کلمې لومړی ساکن حرف تلفظ کیږي .

همزه دوه قسمه ده : همزه وصل (ا) او همزه قطع (أ)

**همزه وصل :** هغه همزه ده چې کله د کلمې په پیل کې راشي تلفظ کیږي مګر کله چې د کلمې په مینځ کې راشي نه تلفظ کیږي .

د کلمې په پیل کې لکه :العمَّ ، المدرسة

د کلمې په مینځ کې لکه : ما اسْمُکَ

همزه قطع : هغه همزه ده چې په هر حالت کې تلفظ کیږي .

د وصل همزه  په دریو کلمو اسم ، فعل او حرف کې واقع کیږي .

**د همزه وصل حرکات :**

**۱- حرف :**

په قرآنکریم کی هغه حرف چې د وصل همزه اخلي  حرف تعریف (الف ،لام ) دی چې د وصل په حالت کې زور اخلي .

کله چې د وصل همزه په لام تعریف داخله شي د د ابتدا او پیل په حالت لوستل کیږي او په مینځ کې نه لوستل کیږي لکه دغه قول د الله سبحانه وتعالی : [التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدونَ] (التوبه:۱۱۲ ) .

وینو چې همزه وصل یوازې په (التَّائِبُونَ) لوستل او په نورو ټولو کلمو کې ساقطیږي او د فتحې (زور) حرکت اخلي .

**ملاحظه** : کله چې همزه استفهام (د سواليه همزه ) په الف لام تعريف داخله شي نو همزه په الف بدليږي لکه : (آللّهُ) په لقوله تعالی : [قُلْ آللّهُ أَذِنَ لَكُمْ أَمْ عَلَى اللّهِ تَفْتَرُونَ] (فصلت :۴۴ ) .

**۲- اسم :**

د وصل همزه په سماعي او قياسي اسماء داخليږي ، او سماعي اسماء لس دي چې د هغه څخه اووه اسماء په قرآنکريم کې ذکر شوي دي لکه : (ابن، ابنت، امرؤ،امرأة ،اثنان (اثنين)، اثنتان (اثنتين، اثنتا) لکه په لاندې مثالونو کې .

لقوله سبحانه وتعالی :[ اِبْنَ مَرْيَمَ] (البقرة: ۸۷) .

[اِبْنَتَ عِمْرَانَ] (التحريم: ۱۲).

[امْرَأَةُ الْعَزِيزِ] (يوسف :۳۰).

[اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْناً] (البقرة:۶۰).

قياسي اسماء :

د خماسي فعل مصدر لکه : اِبتغاء – اِفتراء

د سداسي فعل مصدر لکه : اِستکبار

په اسماء کې د وصل همزه هميشه زير لرونکي وي .

**۳- فعل :**

د اسم او حرف پرته د قرآنکريم نوري کلمې د فعل دي ،د فعل د کلمې دريم حرف ته ګورو که چېرې د فعل د دريم حرف حرکت زور يا زير لرونکی وي نو د وصل همزه مکسوره (زير لرونکی ) وي او که د فعل دريم

حرف مضموم (پیښ لرونکی ) وي نو د وصل همزه به هم مضمومه وي لکه :

قوله سبحانه وتعالی : [اِهدِنَا الصِّرَاطَ المُستَقِيمَ] (الفاتحة ) .

و قوله سبحانه وتعالی : [اسْتَغْفِرْ لَهُمْ أَوْ لاَ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ] (التوبة: ٨٠).

و قوله سبحانه وتعالی :[اُدْخُلُواْ الْجَنَّةَ لاَ خَوْفٌ عَلَيْكُمْ وَلاَ أَنتُمْ تَحْزَنُونَ].

# آتم فصل

## د وقف اووصل احکام

د وقف او وصل پېژندل یو له اهمو مباحثو د علم التجوید څخه دي چې د قرآنکریم لوستونکي یې باید په پوره اهتمام په نظر کې ونیسي .

حضرت على رضى الله عنه د (وَرَتِّلِ الْقُرآنَ تَرْتِيلاً ) په تفسیر کې ویلي (هو تجوید الحروف، ومعرفة الوقوف) یعنې : ددې مطلب د حروفو تجوید او د وقفونو پېژندل دي .

ابن الأنباري وايي: چه وقف او وصل پېژندل ډیر ضروري دي په خاصه توګه د هغه چا لپاره چې د قرآنکریم په معنى نه پوهيږي نو هغه به یې په فواصلو پېژني نو ويلاى شو چې ( د وقف او وصل پېژندل) د قرآن د تعليم لومړي واجب دى .

**د وقف تعریف :**

وقف په لغت کې ودرېدو او ځنډ کولو ته وايي ، او د تجويد په اصطلاح کې د کلمې په آخر باندې د ساه او آواز بندول او وروسته قرائت ته ادامه ورکول د وقف په نامه یادیږي .

**د وقف اقسام :**

په عمومي توګه وقف په درى ډوله دى : اضطراري ، اختياري او اختباري .

**وقف اضطراري :**

وقف اضطراري هغه وقف دی چې د یو غیر اختیاري سبب له مخې مینځته راشي لکه : د تنفس تنګوالی یا ستړیا، ټوخی ، پرنجی او نور .

**وقف اختیاري :**

په یوه کلمه باندې وقف اختیاري عبارت له هغه وقف څخه دی چې قاري د کوم غدر پرته پخپل اختیار او اراده هغه تر سره کوي .

**وقف اختباري** :اختباري هغه وقف دی چې زده کوونکی د معلم په غوښتنه د امتحان او معلوملو لپاره وقف کوي .

وقف اختیارې په لاندې دولونو ویشل شوی دی:

**وقف تام :**

وقف تام په يو كلمه باندې هغه وقف دی چې معنی پوره شي او د راتلونكي سره هيڅ لفظي او معنوي تعلق ونلري ، لكه د سورتونو په آخر باندي وقف ، د قصې په پای كې وقف ، د مؤمنانو او كافرانو د صفاتو په آخر او يا د جنت او ذوزخ د ذكر په پای كې او يا د نورو داسې موضعاتو په پای كې وقف كول چې د هغه موضوع پای وي .

**حكم :** وقف كول حسن دي .

مثال : [أُوْلَـئِكَ عَلَى هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ وَأُوْلَـئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ * إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُواْ سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لاَ يُؤْمِنُونَ] (البقرة 5-6) .

**وقف كافي :**

وقف كافي په يوه داسې موضوع باندې وقف كولو ته وايي چې د راتلونكی موضوع سره معنوي تعلق ولري نه لفظي ، يعنې په معنې كې يو له بله تعلق لري مګر په لفظ كې يو بل سره څه تعلق نلري .

**حكم :** وقف او وصل دواړه جايز دي .

مثال : وقف كول په (**الْبَيْتِ**) باندې په دغه قول د الله تعالی [فَلْيَعْبُدُوا رَبَّ هَذَا الْبَيْتِ * الَّذِي أَطْعَمَهُم مِّن جُوعٍ وَآمَنَهُم مِّنْ خَوْفٍ] (قريش 3-4)

ځكه چې ماقبل د مابعد سره په معنی كې تعلق لري مګر په لفظ او اعراب كې پيوستون او تعلق نلري .

**وقف حسن :**

په یو داسې موضوع او عبارت باندې وقف کولو ته وایي چې معنی یې پوره وي مګر راتلونکي موضوع د معنی پوره کیدو لپاره مخکې موضوع ته اړتیا ولري .

**حکم :** څرنګه چې معنی یې پوره (حسن مفید ) ده ، وقف وربانديې پکار دی او د ادامه په حالت کې یې له راتلونکي موضوع سره اعاده او تکرار پکار نه دی ، مګر دا چې د آیت سره وي او د آیت په سر به مطلق وقف تر سره کیږي که څه هم معنوي او لفظي تعلق ولري ځکه چې د آیت په سر باندې وقف کول سنت دي .

**وقف غیر جایز:**

وقف غیر جایز داسې وقف دی چې قاري په داسې عبارت باندې وقف وکړي چې معنی یې پوره شوې نه وي او د راتلونکي عبارت سره لفظي او معنوي تعلق ولري .

**حکم :** جایز نه دی مګر دا چې ضرورت وي لکه : د نفس تنګي ، توخی ، پرنجی او نور . نو کله یې چې اضطراري وقف وکړ په هغه باندې اعاده کول واجب دي .

**وقف قبیح :**

په کوم داسې عبارت باندې وقف کول چې راتلونکي عبارت سره لفظي او معني تعلق ولري او په معنی کې قبیح غلطي رامینځته کوي وفف قبیح بلل کیږي .

**حکم :** د ضرورت پرته حرام دی او که اضطراراً وقف وشی اعاده یې واجب ده .

**د وقف کولو طریقه :**

په آخر د کلمې باندې دریدل یا وقف په څلورو طریقو تر سره کیږي

**۱- وقف ابدال :**

(بدلول ) د وقف په حالت کې د کلمې آخري توری په بل توري بدلیږي

الف ) : کله چې آخر دکلمې تاء (ة) وي د وقف په حالت کې په (ه) بدلیږي لکه : **( رَحْمَةً - رَحْمَهْ)**

ب ) : هغه کلمات چې په تنوین (دوه زورونه) ختم شوی وي د وقف په حالت کې په مدي الف بدلیږي لکه : **(حِساباً - حِسابا)** او که چیرته په (دوه زیرونو او دوه پیښونو) باندې ختم شوی وي آخري حرف یی ساکن کیږي.

**۲- وقف اسکان :**

(ساکن کول ) د ابدال او مفتوح تنوین نه بغیر په نورو ټولو کلماتو کې د وقف په حالت کی د کلمې د آخري توري څخه حرکت لرې کیږي او ساکن ګرځول کیږي لکه : **یَوْمُ ـــ یَوْمْ**

**۳- وقف روم :**

په کوم حرف چې وقف تر سره کیږي د هغه حرف دریم حصه ادا کول په ټیټ او خفیف آواز چې تنها قاري ته نږدې کس یې واوري د وقف روم په

نوم يادیږي ، دا طريقه يوازې د مضموم (پيښ لرونكي ) او مكسور (زير لرونكي ) حرف لپاره هغه كه منون وي او كه نه جايزه ده .

لكه : ﴿لَفِي خُسْرٍ﴾ (العصر ٢ ).

**۴- وقف اشمام :**

د وقف شوې حرف د ساكن كولو وروسته ، شونډې د ضمه (پيښ) په شان را ټولول پرته له دې چې د ضمه اواز واورېدل شي د وقف اشمام په نوم يادیږي .

چې يوازې ليدونكى يې حس كولاى شي او وقف اشمام يوازې په مضموم (پيښ لرونكى ) حرف تر سره كيږي په زور او زير لرونكو حروفو كې نه تر سره كيږي لكه :

[إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ] .

**يادونه :**

د وقف روم فائده دا ده چې تر څو اورېدونكى د كلمې د آخري حرف حركت تشخيص كړاى شي .

د وقف اشمام فائده دا ده چې ليدونكى شخص ته د كلمې د آخرې حركت ښودل دي .

د يادونې وړ ده چې غير ماهر قاريان به د دغو دوو طريقه څخه كمه استفاده كوي او يا به هغه په كامله توګه ترک كوي ځكه د دغو طريقو عملي كول څه مشكل او باريک دى په خاصه توګه د روم طريقه ، د ماهر قاريانو پرته نور په اشتباه كې لويږي .

**د وقف نښې :**

د هري ژبی ویونکی چه کله خبرې کوي نو چیرته دریږي او چیرته نه دریږي ،کله ډیر او کله لږ ایساریږي او په دریدو او نه ودریدو کې د خبرې پوره بیان او په مفهوم کې یی ډیر لوی دخل دی .

نو ضروري خبره ده چې ددی عظیم کتاب لوستونکی ددې رموزو یا علائمو پوره خیال وساتي او دغه علایم چې اهل علمو د دریدو او نه دریدو نښي مقررې کړي دي په لاندې ډول دی :

**د وقف اووصل علائم**

| شمېره | علامه | مطلب | تفصیل |
|---|---|---|---|
| ۱ | ○ | آیت | چېرته چې خبره پوره شي هلته وړه غونډې دایره وي چې دې دایره ته آیت وایې دا د وقف تام علامه ده پدی ودریدل پکار وي . |
| ۲ | م | وقف لازم | په دې ځای کې درېدل لازمي دي ، د نه درېدلو په صورت کې په معنی کې خلل راځي |
| ۳ | ط | وقف مطلق | دا د وقف مطلق نښه ده پدې باندې مطلقاً دریدل پکار دي . |
| ۴ | ج | وقف جایز | دا د جایز وقف نښه ده دلته دریدل غوره دی او نه دریدل جایز دي . |
| ۵ | ز | وقف مجوز | دلته وقف او وصل دواړه جایز دي مګر |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | | | وصل د وقف په نبست غوره او قوي دی . |
| ۶ | ص | وقف مرخص | د رخصت ورکړ شوي وقف نښه ده چې دلته د نفس تنګی په وجه وقف رخصت دی یعنې که څوک ستړي شي وقف جایز دی او د هغه پرته وقف نه کول غوره دي . |
| ۷ | ق | قد قیل | دا د (قیل علیه الوقف) خلاصه دلته دریدل پکار نه دي |
| ۸ | ک | کذالک (همدارنګه) | کومه علامه چې مخکې تیره شوي وي دلته هم همغه ګڼل پکار دي . |
| ۹ | قف | ودریږه | دا علامه هلته پکاریږي چې د لوستونکی د پیوستی وینا احتمال وي . |
| ۱۰ | لا | وقف نشته | دا علامه کله د آیت د پاسه لیکل شوی وي او کله د عبارت د ننه وي که د عبارت د ننه وي هلته دریدل بالکل نشته او که د ایت د پاسه وي پدی کې اختلاف دی ځینی وایې دریدل روا دي ځینی بیا وایې نه دریدل رواه دي خو که ودریږي یا ونه دریږي په مطلب کې کوم خلل نه راځي . |
| ۱۱ | قلی | قیل لا وقف علیه | ځینې علماء وایي چې دلته وقف نشته . |

| ۱۲ | صل | يوصل (پيوسته كول ) | دلته وصل او وقف دواړه جايز مګر وصل غوره دی . |
|---|---|---|---|
| ۱۳ | صِلی | الوصل اولی | دلته وصل غوره دی مګر وقف هم جايز دی . |
| ۱۴ | وقفه | د سكتې علامه | دا د اوږدې سكتې علامه ده دلته د سكتې په نسبت ډير دريدل پكار دي ليكن چه نفس جاري وي . |
| ۱۵ | س | سكته | دا د سكتې نښه ده دلته لږ وخت دريدل پكار دي خو تنفس به باقی وي (آواز به بندوي ليكن ساه به نه ماتوي ). |
| ۱۶ | ∴ | معانقه | د معانقې د وقفونو معنی دا ده چې كچيرې په اول باندې ودريدې او وقف دې وكړ نو په دوهم به تيريږي وصل به كوي او كه په اول كې دې وصل وكړ په دوهم كې به وقف كوي . |

## سکت :

تعریف :

سکت په لغت کې (د آواز بندولو) ته وايي او په اصطلاح کې د آواز قطع کول پرته د ساه له اخیستلو څخه (آواز به بندوي لیکن ساه به نه ماتوي).

حکم :

سکت د دوو حرکتونو په اندازه کول واجب دي .

سکت د (س) او یا هم (سکته ) په علامه ښودل شوی وي .

په قرآنکریم څلور ځایه سکته تر سره کیږي .

۱- سوره الکهف آیت :۱ .

۲- سوره یس آیت : ۵۲ .

۳- سوره قیامة آیت : ۲۷ .

۴- سوره المطففین آیت : ۱۴ .

## قطع :

تعریف :

د قرآنکریم د قرآئت پای ته رسول او په بل کار مشغولېدل د تجوید په اصطلاح کې قطع بلل کیږي .

قطع یوازې په آخر د آیت کې تر سره کیږي ، په مینځ د آیت کې صحیح نه ده او د کلمې په مینځ کې قطع کول جواز نلري .

**نون قطني :**

د وصل په حالت کې کچېرې د تنوين نه وروسته د وصل همزه راشي نو تنوين په نون مکسوره سره بدليږي چې همدې نون ته نون قطني وايي چې په قرآنکريم د کوچني (ن) په شکل ليکل شوی وي .

مثال :

تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ن ، الَّذِي خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلاً وَهُوَ الْعَزِيزُ الْغَفُورُ (الملک : ۲،۱ ) .

يادونه:په آخر کې به د تلاوت طريقې هم زده کړو چې په څوقسمه دي خو له دې نه مخکې بايد ووايو چې ( متقدمين اومتآخرين علماء پدې متفق دي چې د تجويد زده کړه په عملي او تطبيقي ډول او د قرآنکريم زده کړه په تجويد سره په هر مؤمن مسلمان فرض عين ده او د تجويد زده کړه په نظري شکل سره فرض کفايې ده.

**د تلاوت څلور طريقې**

۱- **ترتيل:** عبارت د هغه تلاوت څخه دی چې په ډير اطمينان سره وشي د تجويد احکام پکې مراعات کړ شي او هرحرف په خپل مخرج کی سره له صفاتو ادا شي او د هغه په معنی کی تدبر او فکر وشي .

۲- **حدر:** عبارت د هغه تلاوت څخه دی چې سرعت يې زياد مګر ټول حروف په خپلو مخرجونو کې ادا شي او د تجويد ټول احکام مراعات شي چې دغه ډول تلاوت په تراويحو کې کيږي داسې نه لکه نن سبا چې زمونږ په ټولنه کې د روژې ځينې مروج ختمونه کيږي چې نه يې اخفا معلوميږي او نه

یی اظهار، نه یی وقف معلومیږي او نه یې وصل او نه څوک وربانديې پوهیږي او بیا وایې چې ما حدر وویل داسې کول په کار نه دي .

۳- **تدویر:** هغه تلاوت ته وایې چې نه ډیر تیز او نه ډیر ورو وي بلکه د ترتیل اوحدر په مابین کې وي چې دا ډول تلاوت په روزانه ګردان یا تلاوت کې کیږي.

۴- **تحقیق:** هغه تلاوت ته وایې چې ډیر په کراره سره وشي یعنې د هرحرف حق د تجوید د احکامو مطابق اداشي او د هر نوع زیادت اونقصان څخه پاک وي .

# نهم فصل

## عملي مثال

## د الحمدلله تجويد

د سـورت فـاتحې (الحمـدلله) تجويـد ځکـه مهـم دی چې پـه هـر لمانځـه کې لوستل کيږي.

**الْحَمْدُ للّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ**

د [الْحَمْدُ] پـه سـر کې همـزه، همـزه وصـل ده چې د لام سـره جنګيـږي ، پـه [رَبِّ] کې (راء) تورى ډکه لوستل کيږي او (باء) مشدد لوستل کيږي.

د (دال) حرف پيښ لري چې بايد دومره اوږد نشي چې د ( واو ) پشان تلفظ شي چې [الحمدو] وويل شي .

د [ح،ع] حروف د ستونې له وسط څخه راوځي.

په [الْعَالَمِينَ] کې د الف په توري کې طبعي مد دى ځکه الف د مد حرف دى مخکې حرف يې (ع) دى زور لري چې د دوو حرکتونو په اندازه کش کول کيږي .

په [الْعَالَمِين] کې د وقف په حالت کې د سکون له کبله عارض مد دى چې د ياء حرف دوه يا څلور يا شپږ حرکته کش کول کيږي ځکه چې د مد د حرف (ياء) وروسته سکون (نْ) راغلى دى چې قصر او مد دواړه پکې جايز دي .

**الرَّحْمنِ الرَّحِيمِ**

د [الرَّ] په سر کې همزه وصل ده چې د (راء) سره جنګيږي او (راء) مشدده لوستل کيږي ، لام نه لوستل کيږي ځکه د لام وروسته شمسى حرف راغلى

دی ، هر ځای مو چې د لام وروسته مشدد حرف لیدلو هغه شمسي حرف دی چې مشدد لوستل کیږي او لام نه لوستل کیږي.
شد د دوو حروفو د تکرار نښه ده چې لومړی ساکن او دوهم متحرک وي لومړی حرف په دوهم کې مدغم (داخل ) شوی وي نو مشدد حرف به د ادا کولو په وخت کې داسې لوستل کیږي لکه دوه حروف.
په [الرَّحْمٰنِ] کې (میم ) په الف ولاړ دی .
په [الرَّحِیم] کې د وقف په حالت کې د سکون له کبله عارض مد دی کچیږي وقف تر سره شي ، چې دوه یا څلور یا شپږ حرکته کش کول کیږي ځکه چې د مد حرف (یاء) وروسته سکون (مْ) راغلی دی.
په [الرَّ] کې حرف (راء) مشدد لوستل کیږي ځکه شمسي حرف دی او لام نه لوستل کیږي ،همدارنګه په حرف (راء) کې تفخیم دی (ډکه لوستل کیږي ).

## مٰلِكِ يَوْمِ الدِّينِ

په [مٰلِكِ] کې د میم حرف د دوو حرکتونو په اندازه کش کول کیږي ځکه چې طبعي مد دی ، په [الدِّینِ] کې لام نه تلفظ کیږي د (دال) حرف شمسي دی مشدد دی داسې لوستل کیږي [ادَّینِ]
همدارنګه د (کاف ) حرف زیر لري چې باید ساکن ونه لوستل شي او زیر دومره اوږد نشي چې (یاء) تری تلفظ شي .

په [الدِّين] کې د وقف په حالت کې د سکون له کبله عارض مد دی چې دوه یا څلور یا شپږ حرکته کش کول کیږي ځکه چې د مد حرف (یاء) وروسته سکون (نْ) راغلی دی.

إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ

په [إِيَّاكَ] کې (یاء) مشدد لوستل کیږي.

په [نَسْتَعِين] کې د وقف په حالت کې د سکون له کبله عارض مد دی چې دوه یا څلور یا شپږ حرکته کش کول کیږي ځکه چې د مد حرف (یاء) وروسته سکون (نْ) راغلی دی.

اهدِنَا الصِّرَاطَ المُستَقِيمَ

د (هاء) حرف د ستوني له اخرې برخې څخه را وځي مګر د (حاء) حرف د ستوني له وسط څخه راځي ، (هاء) به د (حاء ) په څير نه ادا کيږي.

د (صاد ، طاء ) په حروف کې د استلاء صفت دی چې لوړ ، اوچت او ډک ادا کيږي يعنى د ادا کولو په وخت کې د ژبې بيخ پورته تالو ته لوړيږي د لوړيدو له کبله دا توري ډک تلفظ کيږي ، د استعلاء صفت لرونکي حروف دا دي (خُصَّ ضَغطٍ قِظ) .

په [الصِّرَاطَ] کې لام نه لوستل کيږي (صاد) چې شمسي حرف دی مشدد لوستل کيږي.

د (قاف) حرف هرکله چې د ژبی پای له نرم تالو سره ولګيږي د "ق" توری ادا کيږي.

د (کاف) مخرج د لوی (قاف) مخرج سره نږدې لږ د خولې طرف دی ، په (قاف) کې د استعلاء صفت دی چې اوچت تلفظ کیږي مګر په (کاف ) کې د استفال صفت دی چې ټيټ لوستل کيږي.

په [المُستَقِيم] کې هم د وقف په صورت د سکون له کبله عارض مد دی.

### صِرَاطَ الَّذِينَ أَنعَمتَ عَلَيهِمْ

په (صاء ،طاء) حروفو کې د استعلاء صفت دی ډک تلفظ کیږي .

[الَّذِينَ] کې د لام حرف مشدد لوستل کيږي.

په [أَنعَمتَ] د ( نْ) او (مْ) حروف ښکاره لوستل کيږي ځکه چې ادغام او اخفاء پکې نشته ، بلکي د ساکن نون اظهار او د ساکن ميم اظهار شفوي دی .

### غَيرِ المَغضُوبِ عَلَيهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ

د (غ) حرف د ستوني له اولې برخې څخه راوځي ، اوچت او ډک لوستل کيږي.

د (ضاء) حرف :کله چې د ژبې اړخ د ښي طرف يا چپ طرف د پاسنيو اضراس (د ژامې ) غاښونو سره ولګول شي د ضاد حرف ادا کيږي او د ضاد په حرف کې د استعلاء صفت دی لوړ او ډک تلفظ کيږي.

په [عَلَيهِمْ] کې ساکن ميم کې اظهار تر سره کيږي څرګند او ښکار لوستل کيږي .

په [وَلاَ الضَّالِّينَ] د ضاد د تشدد په وجه (الف ،لام ) دواړه نه ادا کيږي او ضاد مشدد لوستل کيږي.

په [الضَّالِّينَ] کې د الف حرف د شپږو حرکتونو په اندازه کش کول کيږي ځکه چې مثقل حرفي لازم مد دی د حرف مد (الف) وروسته سکون په مشدد ډول چې د (لام) حرف دی راغلی دی.

په [لِّين] کې هم د وقف له کبله عارض مد دی چې د ياء حرف د دوو ، څلورو يا شپږو حرکتونو په اندازه کش کول کيږي.

## د قرآنکريم په تلاوت کې ځينې خپرې غلطی

### سورة الفاتحة:

١- ځينې خلک د الله تعالى په دغه قول « مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ » کې د «مالكِ» په کلمه کې د (كاف) حرف ساکن تلفظ کوي حال دا چې زير لري .

٢- ځينې خلک د الله تعالى په دغه قول « إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ » کې د «نَعْبُدُ» په کلمه کې د (دال) حرف ساکن تلفظ کوي حال دا چې د (دال) حرف پيښ لري .

### سورة البقرة:

٣- ځينې خلک د الله تعالى په دغه قول [ فَانفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْناً ] (البقره:٦٠) آيت کې د « عَشْرَةَ » په کلمه کې د (شين) حرف چې ساکن دی په زور سره يې تلفظ کوي چې داسې ويل غلط دي .

٤- ځينې خلک د الله تعالى په دغه قول [وَلاَ تَعْثَوْاْ فِي الأَرْضِ مُفْسِدِينَ] (البقره:٦٠) آيت کې د « تَعْثَوْاْ » په کلمه کې د (ثاء) په پيښ سره تلفظ کوي (تعثُوا) حال دا چې زور لري . پيښ سره يې تلفظ کوي چې داسې ويل غلط دي .

**سورة النساء:**

٥- ځيني خلک د الله تعالى په دغه قول [هَاأَنتُمْ هَـؤُلاء جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَمَن يُجَادِلُ اللّهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ] (النسأء:١٠٩) آيت كې د « يُجَادِلُ » په كلمه كې د (لام) حرف ساكن تلفظ كوي حال دا چې د (لام) حرف پيښ لري .

**سورة المائدة:**

٦- ځيني خلک د الله تعالى په دغه قول [وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلاَّ مَا ذَكَّيْتُمْ] (النسأء:١٠٩) آيت كې د « السَّبُعُ » په كلمه كې د (باء) حرف چې مشدد زور لرونكى دى په پيښ سره يې تلفظ كوي (السُّبُعُ) چې داسې ويل غلط دي .

**سورة الأنعام:**

٧- ځيني خلک د الله تعالى په دغه قول [وَجَعَلُواْ لِلّهِ شُرَكَاء الْجِنَّ وَخَلَقَهُمْ] (الأنعام:١٠٠) آيت كې د « الْجِنَّ » په كلمه كې د (نون) حرف په پيښ سره تلفظ كوي (الْجِنُّ) حال دا چې د (نون) حرف زور لري .

٨- ځيني خلک د الله تعالى په دغه قول [وَمِنَ الأَنْعَامِ حَمُولَةً وَفَرْشاً] (الأنعام:١٤٢) آيت كې د « حَمُولَةً » په كلمه كې د (حاء) حرف په پيښ سره تلفظ كوي حال دا چې زور لري .

٩- ځيني خلک د الله تعالى په دغه قول [ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ مِّنَ الضَّأْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ اثْنَيْنِ] (الأنعام:١٤٣) آيت كې د « الْمَعْزِ » په كلمه كې د (عين) حرف په زير سره تلفظ كوي حال دا چې (عين) ساكن دى .

۱۰- ځینې خلک د الله تعالی په دغه قول [قُلْ إِنَّنِي هَدَانِي رَبِّي إِلَى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ دِيناً قِيَماً مِّلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفاً وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ] (الأنعام:۱۶۱) آیت کې د « قِيَماً » په کلمه کې د (قاف) حرف چې زیر لري او د (یاء) حرف زور لري او مشدد نه دی ، چې مشدد لوستل یې غلط دي .

**سورة الأعراف:**

۱۱- ځینې خلک د الله تعالی په دغه قول [قَالَ اخْرُجْ مِنْهَا مَذْؤُوماً مَّدْحُوراً] (الأعراف:۱۸) آیت کې د « مَذْؤُوماً » په کلمه « مَذْمُومًا » یعني په میم سره یې تلفظ کوي او د « مذموما » کلمه د سوره اسراء په (۱۸او ۲۲) ایت ذکر شوی ده .

۱۲- د الله تعالی په دغه قول [تَتَّخِذُونَ مِن سُهُولِهَا قُصُوراً وَتَنْحِتُونَ الْجِبَالَ بُيُوتاً] (الأعراف:۷۴) آیت کې ځینې خلک د« الْجِبَالَ » نه مخکې (من) زیاتوي (من الْجبلَ) یې تلفظ کوي ، حال دا چې دا کلمات په سوره الحجر او سوره نحل کې ذکر شوي دي .

۱۳- ځینې خلک د الله تعالی په دغه قول [فَلَمَّا أَثْقَلَت دَّعَوَا اللّهَ رَبَّهُمَا لَئِنْ آتَيْتَنَا صَالِحاً لَّنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ] (الأعراف:۱۸۹) آیت کې د « دَّعَوَا » په کلمه کې د (دال، عین) حروفو ته پیش ورکوي حال دا چې دواړه زور لري .

**په رسم المصحف کې ځینې خپرې غلطی :**

۱- کوم ځای کې چې د (واو) حرف د پاسه (کوچنی الف) لیکل شوی وي د الف مد معنی لري لکه :

﴿ وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱرۡكَعُواْ مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ ﴾

چې داسې لوستل کيږي : وَأَقِيمُواْ الصَّلاَةَ وَآتُواْ الزَّكَاةَ وَارْكَعُواْ مَعَ الرَّاكِعِينَ
٢- کوم ځاى کې چې د (واو) د حرف وروسته د پاسه کوچنى الف ليکل شوى وي نو د واو مد معنى لري يا د واو د وديدو معنى لري لکه :

﴿ أُوْلَٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَٰتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ ﴾

چې داسې لوستل کيږي : أُولَـئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ (القرة : ١٥٧ ) .

٣- کچيرې د حرف (واو) سره بل کوچنى واو ليکل شوى وي نو واو په مد دلادل کوي لکه : ﴿يَلْوُۥنَ﴾

چې داسې لوستل کيږي : وَإِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيقًا يَلْوُونَ أَلْسِنَتَهُم بِالْكِتَابِ (ال عمران :٧٨ ) .

٤- همدارنګه (تلوا ) داسې لوستل کيږي : تَلْوُواْ.
وَإِن تَلْوُواْ أَوْ تُعْرِضُواْ فَإِنَّ اللّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا (السناء :١٣٥ ) .

٥- همدارنګه

﴿إِنَّ وَلِـِّۧىَ ٱللَّهُ﴾ . اعراف :١٩٦) : داسې (إِنَّ وَلِيِّيَ الله) ويل کيږي .

﴿لَأَامَنَ﴾ (يونس ٩٩) : داسې (لآمَنَ) لوستل کيږى .

﴿وَجِاْىٓءَ﴾ (الزمر ٦٩) داسې (وَجِيءَ) لوستل کيږي .

پورته ځو مثالونو بيان شول ، مطلب دا چې د حروفو حرکاتو ته بايد پوره توجه وشي .

# لسم فصل

## د قرآنكريم قرآءات

### تعريف :

القراءات جمع قراءة ده چې له مصدر د قرأ، يقرأ، قرانا څخه دی په معنی د لوستلو يا جمع كولو.

په اصطلاح كې علم قراءات هغه علم دی چې د قرآنكريم د الفاظو د ادا كولو څخه بحث كوي.

د جناب نبی اكرم صلی الله عليه وسلم څخه اووه قسمه او په ځينو رواياتو كې لس قسمه قرآءات ثابت شوی دي، د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي :

«أَقْرَأَنِي جِبْرِيلُ عَلَى حَرْفٍ فَلَمْ أَزَلْ أَسْتَزِيدُهُ حَتَّى انْتَهَى إِلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ» (بخاری:۳۲۱۹).

ژباړه: جبريل (اول) ما ته يو قسم قرائت را وښود، ما له هغه څخه وغوښتل چې ما ته نور قرآءات هم را وښيي، تر دې چې اوه قرائت ته ورسيدل.

### د [سبعة احرف] په منعی كې د علماؤ اقوال :

امام سيوطي په علوم القرآن كې ويلي دي چې په دې باره كې د علماؤ څلويښت اقوال دي چې بيا يې ځينې مشهور اقوال په لاندې ډول بيان كړي دي :

۱- خپله د حرف معنی څرګنده نه ده.

۲- ددې څخه په حقيقت کې اووه عدد مراد نه دی بلکي ددې څخه مراد آساني او توانايي ده.

۳- ددې څخه مراد اووه قراءات دي.

۴- ددې څخه مراد اووه لهجې دي چې معنی يې متفقه مګر په نحوي او لفظي ډول فرق لري لکه: أقبل، وتعالَ، وهلمّ، وعجّل، وأسرِعْ، و عن أُبَيِّ

۵- ددې څخه مراد د تلاوت پر مهال د نطق کيفيت دی لکه: ادغام، اظهار، تفخيم او ترقيق، اشباع، مد او قصر، تشديد او تخفيف او تليين او تحقيق.

۶- او ددې څخه د عربي اوه ژبې مراد دي کوم چې د عربي فصح ژبې دي. (مختصر اتقان في العلوم القرآن ص ۹۳).

علوم القرآن الاكاديمية الاسلامية ليکي :

قول جمهور أهل الفقه والحديث: المراد بالأحرف السبعة، سبع لغات من لغات العرب تختلف في اللفظ وتتفق في المعنى، هو ما يسميه العلماء بالمترادف. المترادف، يعني اللفظة تختلف ولكن المعنى واحد.

ژباړه: د اهل فقه او حديث جمهور قول دا دی چې: د حرف السبعة څخه مراد د د عربو د ژبو څخه اووه ژبې يا اووه لهجې دي چې معنی يې يو شان مګر په لفظ کې فرق لري کوم چې هغه ته علماء مترادف وايي، مترادف داسې چې: معنی يې يوه مګر الفاظ يې مختلف وي.

**د قرآئت د اختلاف حکمت :**

۱- د امت د پاره تسهيل، آساني او تخفيف.

۲- د قرآنکريم او اسلامي امت عزت او شرف چې بل هيڅ آسماني کتاب په څو قراءاتو نه دی نازل شوی.

۳- د قراءات په تفاوت کې تحقيق او څېړنه او په دې باندې د اجر حاصلېدل.

۴- د قرآنکريم لوړ اعجاز.

۵- د الله سبحانه وتعالی د کلام د اسرارو اظهار.

(مختصر أتقان في العلوم القرآن ص ۱۰۷).

**د صحابه کرامو مشهور قاريان :**

عثمان بن عفان، علی بن ابی طالب، ابی بن کعب، زيد بن ثابت، عبدالله بن مسعود، ابو درداء او ابو موسی الأشعری.

د تابعينو مشهور قاريان عبارت وو له: په مکه مکرمه کې عطا، مجاهد، طاووس، عکرمه، ابن ابی مليکه، عبيد بن عمير او نور.

په مدينه کې سعيد بن مسيب، عروه، سليمان بن يسار، عطاء بن يسار، زيد بن اسلم، مسلم بن جندب، عمر بن عبدالعزيز، ابن شهاب الزهری، عبدالرحمن بن هرمز، معاذ او نور.

په بصره کې ابوعاليه، ابو رجاء، نصر بن عاصم، يحيی بن يعمر او حسن.

او په کوفه کې ابن سرين، قتاده، جابر بن زيد او نور.

**د علم قرائت اووه مشهور امامان :**

د تابعينو د دور وروسته د علم قرائت اوه مشهور ائمه كرام په لاندې ډول دي :

نافع المدني، عبد الله ابن كثير المكي، أبو عمرو البصري، عبد الله بن عامر، عاصم الكوفي، حمزة الكوفي او الكسائي الكوفي.

١- **نافع المدني:** نوم يې نافع د عبدالرحمن بن ابى نعيم زوى اصلاً د اطفهان چې په (٧٠- ١٢٠) كلونو كې يې ژوند كړى دى، د رنګه تور، ښكلي مخ او نيک اخلاقه سړى ؤ چې د استاذانو شمير يې اويا تنو ته رسيږي، په علم قرآئت كې د مدنې منورې د خلكو امام او پشوا وو. د ده څخه د قرآئت روايت ابو موسى، عيسى بن مينا الزرقي مولى بنى زهره، عثمان بن سعيد القبطي مصري روايت كړى دى.

٢- **ابن كثير:** نوم يې عبدالله د كثير زوى اصلاً د فارس چې په (٤٥-١٢٠) كلونو كې يې ژوند كړى دى، په علم قرآئت كې د مكې د خلكو امام وو.

علم قرآئت يې له: عبدالله بن زبير، ابى ايوب انصاري، او انس بن مالک رضى الله عنهم څخه زده كړى دى، او د ده څخه د علم قرآئت روايت: احمد بن محمد بن عبدالله، ابو الحسن البزي، محمد بن عبدالرحمن المخزومي، ابو عمر المكي كړى دى.

٣- **أبو عمرو البصري:** نوم يې ابو عمرو زيّان چې زوى د علا مازنى دى ،عربي اصله ؤ چې په (٦٨-١٥٤) كلونو كې يې ژوند كړى دى، په مكه، مدينه، بصره او كوفه يې قرآئت زده كړى دى.

علم قرآئت يې لـه: ابـو جعفـر يزيـد بـن قعقـاع، يزيـد بـن رومـان، شـيبة بـن نصـاح، عبـدالله بـن كثير، مجاهـد بـن جبر، حميـد بـن قـيس اعـرج مكي ،عبدالله بن ابى اسحاق حضرمي، عـاصم بن ابى النجـود كوفى، ابوالعاليه رفيـع بـن مهـران ريـاحى بصـري ښخـه زده كـړى دى، او د ده ښخـه د علـم قرآئـت روايـت: شـجاع بـن ابـى بصـير، عبـاس بـن فضـل، يحيى بـن مبـارک يزيدى كړى دى.

۴- **عبد الله بن عـامر**: نـوم يې عبـدالله زوى د عـامر بن يزيـد اصلي وطن يې دمشـق ؤ چې پـه (۸-۱۱۸) كلونـو كې يـې ژونـد كـړى دى د وليـد بـن عبدالملک د خلافت په وخت كې د دمشق والي او قاضي ؤ.

علم قرائت يې له: اهل شام قاري صحابي ابى درداء او عثمان رضى الله عنه د شاګرد مغيرة بن ابى شهاب مخزومي ښخه زده كړى دى، د ده ښخه هشام بن عمار، ابو وليد السلمي الدمشقي، ابو عمرو، عبدالله بن احمد الفهري الدمشقي روايت كړى دى.

۵- **عـاصـم الكـوفي**: نـوم يـې عـاصـم زوى د ابـى النجـود اسـدي چې پـه (...-۱۲۷) كلونو كې يې ژوند كړى دى، په قرآئت كې د كوفې د خلكو امام ؤ.

علـم قرائـت يـې لـه: ابـو عبـدالرحمن سـلمي چې شـاګرد د على بـن ابى طالب رضى الله عنه دى، زرّين حبيش د عبدالله بن مسعود شاګرد وو زده كړى دى.

د ده ښخه روايت: شعبه، حفص بن سليمان، ابو عمر الاسدي الكوفي كړى دى.

۶- **حمزة الكوفي**: نوم يې حمزه زوی حبيب بن عمار بن اسماعيل ؤ چې په (۸۰-۱۵۶) کلونو کې يې ژوند کړی دی، په قرآئت کې د عاصم وروسته د خلکو امام ؤ.

له جعفر بن محمد الصادق څخه يې علم قرائت حاصل کړی دی او د ده څخه خلف بن هشام، ابو عيسی بن خالد روايت نقل کړی دی.

۷- **الكسائي الكوفي**: نوم يې علي زوی د حمزه ؤ چې په (۱۱۹-۱۸۹) کلونو کې يې ژوند کړی دی، په قرآئت کې د حمزه الكوفي وروسته د خلکو امام ؤ او په ده باندې د قرائت امامت ختم شوی دی.

علم قرائت يې له: حمزه، ابان بن تغلب، عيسی بن عمر، ابن ابی ليلی څخه حاصل کړی دی او د ده څخه، ابو حارث (الليث بن خالد البغدادي)، حفص بن عمر، ابو عمر الازدي البغدادي النحوي د قرائت روايت نقل کړی دی.

(مختصر اتقان في العلوم القرآن ص ۱۰۳).

**د قرآنکريم تعليم او حفظ :**

د قرآنکريم حفظ او يادول په امت باندې فرض کفايي دي، کچېرې د هغه د حفظ لپاره يو ډله را ولاړه شي د نورو غاړه وربانديې خلاصيږي او که ټول دا کار ترک کړي د ټولو غاړه بنديږي.

او د قرآنکريم دومره زده کړه او يادول چې لمونځ او عباداتو کې هغه ته ضرورت دی فرض عين او د هغه څخه علاوه د قرآنکريم زده کړه فرض کفايي ده او ډير غوره عمل دی، په صحيح روايت کې راغلي :« خيرکم من

تعلم القرآن و علمه » (د تاسې نه غوره او ښه سړی هغه دی چې قرآن زده کړي او نور ته يې وښيي).

او هر چې تجويد د قرآن دی ډير مهم دی، د ابن مسعود رضی الله نه روايت دی چې هغه ويلي: «جودوا القرآن » ( لولئ په ښه شان قرآن )، او هغه دا چې د هر حرف حق ادا شي او حرف د خپل مخرج څخه ادا شي، او په غوره شان تلفظ شي داسې چې په هغه کې اسراف، ظلم او افراط نه وي.

جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم دې مطلب ته داسې اشاره کوي: « من أحب أن يقرأ القرآن غضاً كما أنزل فليقرأه على قراءة ابن أم عبد » يعنې ابن مسعود.

ژباړه: د چا چې دا خوښيږي چې قرآن داسې ولولې لکه څنګه چې نازل شوی دی پس هغه يې دې د ابن معسود رضی الله عنه په شان ولولي .

الله تعالی ابن مسعود رضی الله عنه ته په تجويد کې اوچت مهارت ورکړی وو.

د قرآنکريم داسې ويل جايز نه دي چې چيرې مد نه وي هلته مد ورکوي او چيرې چې مد وي هلته قصر کوي او يا په مد کې زياتوالی او کموالی کوي کوم چې د هغه حق دی.

مستحب دی چې قرآنکريم په ښه صوت وويل شي خو په شرط ددې چې د حرف حق ادا شي (حرف د مخرج څخه ادا شي او د حروفو حرکات

تغير نشي)، د مد او قصر حق ادا شي، د نون ساکن او تنوين حقوق ادا شي او همدارنګه د تجويد نور احکام په نظر کې ونيول شي.

**د قرآنکريم د زدکړې درې لارې :**

١- دا چې قرآنکريم د اجرت پرته د الله تعالی د رضا لپاره خلکو ته ور زده کوي دا عمل لوی اجر لري او دا د پيغمبرانو عليهم السلام عمل دی.

٢- دا چې قرآنکريم د اجرت په بدل کې خلکو ته ور زده کوي، د متأخرينو په نزد جايز دی.

٣- دا چې د کوم شرط پرته خلکو ته د قرآنکريم زده کړه کوي کچېرې څوک هغه ته مخکې څه هديه او سوغات ورکړي په اتفاق جايز دی ځکه چې رسول الله صلی الله عليه وسلم معلم الناس وو خلکو به هغه ته سوغات ورکولو او ده به قبلول.

(مختصر اتقان في العلوم القرآن ص ١١٢).

**د قرآنکريم د حفظ د پاره څو قاعدې:**

**لومړی قاعده، اخلاص د کاميابی او فتحې سر دی:** په هر عمل کې چې اخلاص نه وي پر الله تعالی توکل نه وي په هغه عمل کې که هر څومره کوښښ هم وشي بيا به هم ناقص وي او د الله تعالی په نزد به د قبول وړ نه وي ځکه د قرآنکريم لوستل، زده کول او حفظ عبادت دی او د هرعبادت کولو څخه مقصد د الله تعالی رضا ده نو کله چې په کوم عبادت کې اخلاص نه وي هغه مردود دی.

**دوهمه قاعده : د الله تعالی د پاره تقوی:** هر کس چې تقوی اختيار کړي

(تول ګناهونه ترک کړي او د اسلامي شریعت د اوامرو ساتنه وکړي) د هغه د پاره الله تعالی د دنیا او آخرت کارونه او مشکلات آسانه کوي.

لقوله سبحانه وتعالی :[وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا، وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لاَ يَحْتَسِبُ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ ] (الطلاق ۲-۳).

ژباړه: او څوک چې د الله څخه ووېرېږي (الله) ور ته (د ستونزو څخه) د وتلو لار جوړوي، او هغه ته د داسې لارې نه رزق ورکوي چې (په خپله) ګمان نه کوي، او څوک چې پر الله پاک توکل وکړي ده د پاره همدا (الله) کافي دی.

**دریم قاعده :په وړوکتوب کې حفظ** : په کوچنیتوب او کم سن کې حفظ داسې دی لکه په ډبره کې نقش.

**څلورمه قاعده: د حفظ د پاره د خاص وخت ټاکل**:د حفظ د پاره داسې وخت ټاکل چې ګیډه خالي وي ځکه کله چې کیډه له خوراک څخه ډک شي بدن د هغه پر هضمولو کار کوي او ذهن مشغولیږي. نو د حفظ د پاره غوره وخت سهار او مازدیګر دی.

**پنځمه قاعده: د حفظ د پاره مناسب ځای ټاکل** : داسې ځای چې آرام وي سترګې، غوږونه او ژبه ټول حفظ ته متوجه وي.همدارنګه داسې ځای چې اندامونه له حرامو څخه وساتل شي لکه: نا محرمو ته نظر نه کول، د غیبت او بهتان نه کول او داسې نور.

**شپږم قاعده، په ښه صوت او تجوید سره لوستل** :قرآنکریم په ښه صوت او تجوید سره لوستل په کار دي داسې نه لکه د یو عادي کتاب په شان

لوستل بلکي په داسې صوت سره لوستل چې تجویدي قواعد واورېدل شي.

**اومه قاعده** :قرآنکریم کې به د یو مصحف څخه حفظ کیږي نه څو قسمه مصحفونو څخه.

**آتم قاعده** :د یادولو او حفظ څخه مخکې به لومړی د قرآنکریم تجوید او صحي لوستل زده کوي د هغه نه وروسته به حفظ کوي.

**نهمه قاعده ،تکرار**: د تیر او نوي درس به ګردان او تکرار کوي ځکه که تکرار نشي له یاده وځي.

**لسمه قاعده** : هر ورځ منظم حفظ تر قطع کولو غوره دی.

**یوولسمه قاعده:** د قرآنکریم آیتونو ته کتل او بیا د حفظ په وخت کې سترګې پټول، که د حفظ په وخت کې یو بل طرف ته وکتل شي دوماغ مصروفیږي.

**دوولسمه قاعده:** د خپل شیخ او معلم سره ارتباط، هغه ته د درس تکرارول تر څو صحي او علط لوستل ورته معلوم شي.

**دیارلسمه قاعده:** د قرآنکریم په معنی او مفهوم پوهیدل له حفظ سره کومک کوي.

**څلوارلسمه قاعده:** دعا کول او د الله سبحانه وتعالی څخه مدد غوښتل.

**د قرآنکریم د حفظ وخت او زمان:**

- ✓ که د ورځې یو آیت یاد شي نو ټول قرآن به په ۱۷ کاله ۷ میاشتو او ۹ ورځو کې یاد شي.
- ✓ که د ورځې دوه آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۸ کاله ۹ میاشتو او ۱۸ ورځو کې یاد شي.
- ✓ که د ورځې ۳ آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۵ کاله ۱۰ میاشتو او ۱۳ ورځو کې یاد شي.
- ✓ که د ورځې ۴ آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۴ کاله ۴ میاشتو او ۲۴ ورځو کې یاد شي.
- ✓ که د ورځې ۵ آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۳ کاله ۶ میاشتو او ۷ ورځو کې یاد شي.
- ✓ که د ورځې ۶ آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۲ کاله ۱۱ میاشتو او ۴ ورځو کې یاد شي.
- ✓ که د ورځې ۷ آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۲ کاله ۶ میاشتو او ۳ ورځو کې یاد شي.
- ✓ که د ورځې ۱۰ آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۱ کال ۹ میاشتو او ۳ ورځو کې یاد شي.
- ✓ که د ورځې ۱۳ آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۱ کال ۴ میاشتو او ۶ ورځو کې یاد شي.

- ✓ که د ورځې ۱۵ آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۱ کال۲ میاشتو او ۱ ورځ کې یاد شي.
- ✓ که د ورځې ۲۰ آیته یاد شي نو ټول قرآن به په ۱۰ میاشتو او ۱۶ ورځ کې یاد شي.

و ما توفیقي الا بالله علیه توکلت والیه انیب

و صلی الله تعالی علی محمد صلی الله علیه وسلم و اله و صحابه اجمعین

حمدالله "شاکري" غفره الله ولوالدیه و لجمیع المسلمین

داراسات الاسلامي – الاکادیمیة الاسلامیة العالمي

**مأخذونه :**

جمال القرآن – اشرف علي تهانوي رحمه الله
قرآن كمپليس – طباعة ملک فهد سعودي
برنامج الأحكام التجويد – موقع طريق الاسلام
الواضح في أحكام التجويد – دوكتور محمد عصام
المفيد في علم التجويد – الحاجة حياة على الحسينى
المذكرة في التجويد – محمد نبهان بن حسين مصري
الأخطاء الشائعة في تلاوة القرآن – عبدالرحمن عيتاني .
كيف تحفظ القرآن – دوكتور مصطفى مراد
تبسيط الأحكام التجويد – دوكتور أحمد سليمان
البرهان في التجويد القرآن – محمد صادق قمحاوي
اطلس في التجويد – دوكتور ايمن رشدي سويد
تجويد آسان – دوكتور ابو عاصم عبدالعزيز ، مترجم عبدالكريم محمدي
أحكام التجويد القرآن الكريم كاملة و بالصور – موقع سر الحياة
تجويد ابتدايي – محي الدين مرادي .